ډالۍ:

د دغه هنر ټولو پښتنو مخکښانو ته
په ټوله نړۍ کې د پښتو غږنیو او انځورنیو رسنیو ویندویانو ته

د انټرنیټ په مخ پرلیکه کونکې سمسور حبیبي

لړلیک :

## د سر د خبرو په پلمه:

الحمد الله وکفی وصلوه وسلام علی رسوله الکریم:

وروسته:
داچې انسان اشرف المخلوقات پیدا شوی دی ، هرڅه یې په واک کې ورکړ شوي دي او هرڅه دهغه د آسانتیا لپاره پیدا شوي دي ، نو په هماغه کچه کرار هم نه کیني ، تل یې طبیعت په خپله ګټه څرخولی دی او دځان د سوکالۍ او ښه ژوند لپاره یې هڅه کړې ده .
راډیو او ټلویزیون هم یو له هغه لاسته راوړنو څخه ده چې بشر دخپلې سوکالۍ لپاره ترلاسه کړې ده او نن یې کاروي ، له هغې نه استفاده کوي او خپل ژوند ته په هغه توګه دوام ورکوي چې تمه یې لري او زړه یې غواړي. ترڅو د لویې او دکمال دخاوند په پیدا شوې نړۍ کې د ژوند ځنځیر وغځوي ترهغه چې هغه څښتن غوښتي دي.
ویندویې هم دبل هرڅه په څیر د ښه اوریدلو ، ښه خبریدلو ښه ذده کولو او ښه ژوند کولو د وسیلې په توګه کاریږي ، راډیو او ټلویزیون جوړشوي دي ترڅو د نړۍ دنورو وسیلو په څیر هغه هم دهمدغه سترې بشرپه واک کې وي او بشر ترې استفاده وکړي.
خدای ج انسان ته ژبه وکړې ده ترڅو پرې خبرې وکړي ، یوبل پرې وپوهوي ، دیو اعتقادات بل ته ولیږدوي او دهغه له ګروهنو نورخبر کړي.
خو له همدغه نعمت څخه د ښې ګټې اخیستنې لپاره هم بشر هڅه کړې ده ، هماغه ډول لکه چې له نورو نعمتونو لکه دبدن دغړو ، عقل ، حواسو او نورو څخه یې پورته کړې ده له ژبې ، غوږونو او سترګو څخه هم ښه ګټه پورته کړي.
خبرې کېدای شي ، په اشارو هم یوبل پوهولای شو ، د لاسو په وسیله هم کېدای شي یوبل پوه کړو ، خو دخبرو په وسیله ، بیا دښوخبرو په وسیله هان د ټلویزیون او راډیو له لارې دیوبل پوهولو ته مخه کووترڅو په ښه توګه دا دنده اجرا کړو او دخدای ج دراکړل شوو نعمتونو څخه په ښه توګه ګټه واخلو .

خدای ج موږ ته ژبه راکړې ده ویندویي وکړو ، غږيي راکړی دی ترې استفاده وکړو ، او که ښه غږيي راکړی دی هغه بې په موږ بله لورینه ده باید له ښه څیز ښه نعمت څخه ښه ګټه واخلو ، او تل د هغه د پنځوونکي په اړه فکر وکړو چې څومره لوی او په هرڅه قادر دی.
موږ هم راډیو لرو او تلویزیون لرو ، هلته ویندویانو ته اړتیا شته ترڅو خپله دنده ترټولو په ښه توګه ترسره کړي ، نو په همدې خاطر هم ددې دندې په اړه د څو لارښونو په توګه چې د بنده خپلې تجربې او مطالعې دي ، د ایران د تکړه ادیب استاد حسن شیدا لیکلي دي او دنورو لیکوالو هڅې او تجربې دي ستاسې په مخ کې ږدم هیله ده تریوې کچې مې خپل مسلمان او سرلوړي ملت ته خدمت کړی وي او هغه ستر مسولیت چې موږ یې ددې خاورې او ژبې په وړاندې لرو تریوې اندازې پورې پوره کړی وي.

په ډېره مینه او مننه
عبدالله الهام جمالزی
تهران 1386/2/4
د ایران د نړیوال راډیو ټلویزیون میلمسیتون

## دکتاب په اړه د تکړه او وتلي ویاند او لیکوال ډاکټرعیسی ستانکزي یادښت

ژبه په هره برخه کې دافهام او تفهیم وسیله ده چې دوه یا څو کسان پرې یو بل پوهوي اوپه نړۍ کې دپوهاوي راپوهاوي غوره وسیله ګڼل کیږي هماغه ډول چې په لیکنه کې دژبې ارزښت لوړ او دپام وړ دی په راډیو او ټلوویزیون کې هم غوره او ارزښتمنه و سیله ګڼل کیږي لکه څرنګه چې په لیکنه کې احتیاط په کار دی هماغه رازپه راډیو او ټلویزیو ن کې هم بایداحیتاط وشي ځکه چې ښایي یوه وړه غلطي یوې ټولنې ،قوم او هیواد ته لوي تاوان ورسوي اوبرعکس ډیرځله ښایي یونطاق په خپلې مینه ناکې او په زړه پورې نطاقۍ سره دخلکو اندیښنې ختمې کړي چې ښایي دغه کار دیوه هیوادلوړشخصیت یا ولسمشر هم ونه کړای شي البته دغه کارهله شونی وي چې ویندوي له خپل مسلک سره مینه ولري او ددې ترڅنګ پر خپلې ژبې مسلط وي ډیرکسان به مو لیدلي وي چې وایي فارسي ، عربي او دنړۍ دغسې نورې مشهورې ژبې خوندورې دي او ښه نطاقي پکې کیدای شي البته دنړۍ دژبو ننګ او آهنګ تل په زړه پورې نه وي خو که کلمې په سمه توګه انتخاب شي او په مینه نطاقي وشي هره ژبه ښکلی آهنګ او ننګ پیدا کوي مطلب دا چې که لیکنه ښه وي نطاقي هم ورسره ښه کیږي او که نطاق اصولو اوقوانینو ته پابنده وي اوریدونکی به ترې خوند اخلي.

په نړۍ کې دهر معمولي کار لپاره هم په سلګونو کتابونه لیکل شوي دي او هره ورځ نوي څیړنې کیږي په تیره بیا دویندویي دفن او راډیو او ټلویزیون دپروګرامونو په هکله ډیر کار شوی دی ځکه چې نن سبا درسندویو اهمیت پر هیچا پټ نه دی په پښتو کې دغه ډول کتابونه په نشت حساب دي داپه داسې حال کې ده زمونږ دویندویۍ اړخ هم ډیر خواشینونکی او کمزوری دی. نو دښاغلي الهام دغه کتاب به په دې برخه کې یوه تشه ډکه کړای شي یوې خبرې ته باید پام وکړوچې ویندویي له مبنې اوعلاقې سره کلک تړاو لري که تاسو له دغه مسلک سره مینه ولرئ هر ډول مطلب به په ډیر ښه ډول ولولئ او اوریدونکی به هم له تاسو سره مرسته وکړي ښاغلي الهام هم دپښتو د راډیوګانو او

ټلويزيونو دکمزوريو او نيمګړتياوو په ليدلو سره او دخپلې خاصې مينې له کبله دغه کتاب ستاسو داستفادې لپاره چمتو کړی دی البته دغه کتاب يوازې د لارښود په توګه رول لوبولای شي ځکه چې د نطاق لپاره تر ټولو مهمه خبره نه ستړی کيدونکی کار او هلې ځلې اوله کارسره مينه، شخصي تجربه او ايمان داري ده هيڅ کتاب او ليکنه نه شته چې په لوستلو سره يې مونږ يو ښه او اوچت وياند يا نطاق شو ښايي ددغه کتاب په لوستلو سره تاسو ته دا فکر پيدا شي چې په ځينو برخو کې له يوه بې تجربې او نوي نطاق څخه ډير څه غوښتل شوي دي او ځيني مطالب هم تکراري دي. که دغسې احساس لرئ بې انصافي به موکړې وي خو که هرڅومره دغه توقعات او هيلې زياتې وي تاسو به خپل کار په بريالیتوب وکړای شئ.

ددغه کتاب هر څپرکی او فصل ښه ولولئ او عيناً پرې عمل وکړئ ځکه چې ډير څه ترې زده کولای شئ ليکوال په يوې سرچنې بسنه نه ده کړې بلکه هڅه يې کړې له بيلابيلو لارو دهيواد په رسندويوکې ويندويان وهڅوي چې ښه نطاقي وکړي او خپلې ټولنې اوژبې ته د تاوانونو مخه ونيسي.

زه په خپله دغه کتاب پښتني رسندويو ته يوه زياتونه بولم او له خدايه غواړم چې عبدا... الهام ته نور توان هم وروبخښي چې دغه ډول نور کتابونه هم دافغانانو رسندويي ټولنې ته وړاندې کړي

ستاسو او ددغه ځوان د بريالیتوب په هيله.

## دکتاب په اړه د تکړه ویاندې ډاکترې فریدې هوډ سیفي څو ټکي یادونه

د لومړي ځل لپاره مې په پښتو ژبه د ویندویۍ په اړه کتاب ولوسته. تر ټولو دمخه راته دا ډیره جالبه وه چې دا کتاب یوه ځوان نطاق لیکلی چې لاس یې له قلم سره هم اشنا دی.
هغه ځوان دی او دومره انرژي لري چې په هره برخه کې چې فکر کوي لږڅه تر سره کولی شي د ډیرو په تمه خپل اخري توان په کار وړي ، زما په اند دا دهغه د بریالیتو ب راز دی.
داسې ښکاري  چې عبداله الهام د څیړنو تر څنګ ، په خپل کتاب کې ډیرې خپلې تجربې هم انځور کړې.  او په ځینو برخو کې یې د هغو کسانو مثالونه ورکړي چې دده په نظر ښه نطاقي کوي. یو ځاي یې د ازادي راډیو د اوسني مشر اکبر ایازي یادونه کړې او دهغه په غږ یې لوستل شوي مطلب د ښه مثال په توګه یاد کړي.
کتاب په مینه لیکل شوی او فکر کوم د هغه چا لپاره چې غواړي په راډیو کې ویندوي وکړي کیداي شي د معلوماتو تر لاسه کولو او زده کړې لپاره ښه ماخذ وي.  که څه هم چې اوس مهال د داسې یو کتاب چاپول ډیر ضروري او غوره کاردی خو زما په نظر په دې اړه نورې څیړنې او کار ته هم اړتیا شته.
په رواوسته کلونو کې په افغانستان کې د راډیویي او تلویزیوني خپرونو لمن ډیره پراخه شوې . ښاییښته ډیرو کسانو ته پکې دا امکان برابر شوی چې په سیمزو ، نړیوالو او یا شخصي تلویزیوني او راډیویي چینلونو کې د نطاقۍ تجربې تر سره کړي . خو د عبداله الهام د خبرې په تایید دي ته اړتیا شته چې د راډیو او تلویزیون ویندیان د ویندویي پر اصولو پوه شي.
دعبداله په کتاب کې د ویندویۍ د اصولو عام ټکي راخیستل شوي دي.  زه ځان ددې وړ نه بولم چې په دي برخه کې نظر ورکړم.  خو له خپلې  تقریبا شل کلنې تجربې په رڼا کې د اویلي شم چې تر ټولو مهمه خبره دا ده چې ویاند خپله په هغه څه پوه شي چې اوریدونکې ته یې لولي. یوائې د متن ټکې ونه لولي. که چیرته څوک په خپله په یوي موضوع ښه پوه شي نو ښه یې وړاندي کولي شي . په مینه لوستل او په پوره تمرکز د متن لوستل هم هغه مسله ده چې داوریدونکي پاملرنه ځانته اړولی شي.

عبداله الهام ته مبارکي وايم چې په خپل نه ستړيدونکي کار يې د ويندويي په برخه کې د زده کړې او تجربي په برخه کې لومړنی او پوخ ګام په ډيره مينه اوچت کړی. په دې باور لرم چې دا به ځوان نسل ته د زده کړې ښه سرچينه وي.

عبداله الهام ته د نورو برياليتوبونو په تمه..

په درناوي

ډاکتره فريده هوډ سيفي

پراګ ، ازادي راډيو

## لومړۍ برخه :

(ویندوی کیدل) یوه معنی لري او (ویندويي) بله معنی ، نن په هغه راډیو ګانو او تلویزیونونو کې چې پښتو خپروني لري ، زیاتره داسې کسان شته چې ویاند نه دی مګر ویندويي کوي ، که نه يې منئ نو د چین ، ډهلي او همدا راز ځینو نورو راډیوګانو او ټلویزیونونو ته غوږ ونیسئ او وګورئ.
تاسې کیدای شي چې د بخت ،ښه ملګري ، سیاسی پوهې لوړو ذده کړو او یاهم د ښې او په زړه پورې ځیرې له لارې د ویاند په توګه رادیو تلویزیون ته لاره پیدا کړئ. خو د بخت یاد ملګري دمرستې په مټ تاسې کولای شی یو ویاند واوسئ ؟ فکر نه کوم.
ویاند یا ویندوی کیدل د ویاندئ یا ویندویۍ د بې پایانه لارې لمړی ګام دی.
ځینې وخت پروډیوسران یامسولین کله چې څوک د ویاند په توګه غوره کوي وایې چې:
اوس بدندی کرار کرار ښه کیږي.
کله چې بوټونه اخلئ هغه دکاندار به درته وایي چې داسمه ده چې دابوټونه مو اوس په پښو کې تنګ دي خو کرار کرار او دوخت په تیریدلو سره سمیږي او پښې مو یې ځان ته جوړوي او آزادیږي.
خو هغه څوک چې په میلیونونو کسان ورته غوږ دي او یا یې پروګرام له تلویزیون څخه ګوري هغه باید واقعاً وکولای شي کومه دنده چې ویاند په غاړه لري ادا کاندي او باید ویاند وي نه دا چې وروسته ویاند کیږي.
څوک چې د خبرو په ځای چیغې وهي یا هیڅکله هم غاښونه سره نه بیلوي دهیڅ څه په مرسته نشي کولای په آسانۍ سره د( ویاند ) په واقعي معنی سره ویاند جوړ شي.

عجیبه ده هر شغل کتاب ، دورې او ازموینې لرې خو ته به وایې چې د ویاند د روزلو لپاره دې څیزونو ته اړتیا نه لیدل کیږي ، دا داوس مهال ډیر ویندویان چې ددې هنر دعوا کوي ددې خبرې دلیل دی.
که څه هم زموږ په راډیوګانو کې تر ډیره حده ویندویې عالي ده ، او ښه ویندویان لرو خو په خواشینئ سره به ووایو چې د ټلویزیون ویندویې مو صفر ولاړه ده.
له یوې خوا موږ په راډیوټلویزیون کې خاصې او مسلکي دورې نه لرو ، که وي هم بې ګټې دي ځکه دیوې او نئ او یوې میاشتې په دورې کې هومره څه نه ذده کیږي ، له بلې خوا زموږ له حکومت څخه هم تو بې شوې ده ، ژبې ته پام نه کیږي او دژبو وده په ټپه ولاړه ده.
بل داچې د راډیوګانو او ټلویزیونونو چارواکي هم ځومره احساس نه لري ، او هرڅوک چې کولای شي متن ولوستلای شي نور نو راځي په ټلویژن کې ویاندي کوي ، چې همدې کارونو په تیره بیا په ټلویزیون کې زموږ له ادبیاتو او ملي ټرمینالوجئ سره هم ظلم وکړ او د ویندویئ راتلونکی یې هم تیاره کړی دی.
په نورو هیوادونو کې که پوهنځئ هم نشته خو په دې څانګه کې تحصیلات شته دي ، هر راډیو ټلویزیون لږتر لږه خپل روزنځای لري ، او خپل ویندویان روزي.
خو داچې زموږ په راډیو ټلویزیون کې داستونزې هم شته نو ددې لپآره چې خپلې تجربې مو له نورو هغو ویندویانو سره چې واقعاً غواړي ویاند شي شریکې کړې وي نو پدې اړه یې ځینې سپارښتنو ته رابولو.
لومړئ له هر څه مخکې د لومړنیو ټکواو پیل په توګه داڅیزونه په یاد ولرئ.

۱- عشق:

سر دفتر عالم معاني عشق است
سربیت قصیده جواني عشق است
ای آنکه نداری خبر ازعالم عشق
این نکته بدان که زندګاني عشق است

لمړئ له خپلې ژبې سره مینه:

که تاسې واقعاً دا احساس ولرئ چې ستاسې ژبه هم د نړۍ د نورو ژبو په څېر روانه فیصحه او پراخه ژبه وي ، که تاسې غواړئ چې ستاسې ژبه لکه دنورو ژبو غوندې مطرح ژبه وي ، که تاسې غواړئ چې ستاسې دژبې آثار هم په هره ژبه کې ژباړل شوي وي او بالاخره غواړئ ستاسې ژبه هم دنورو ژبو په څیر بډایه ژبه وي نو له خپلې ژبې سره مینه ولرئ او همدا مینه به تاسې خپلې دغې موخې ته ورسوي.

باور وکړئ د هغه مقصد لپاره چې غواړئ یې ترټولو ښه وسیله ، انګیزه او پلمه عشق دی مینه ده.

مینه ستاسو شپه له سهاره سره پیيي بې له دې چې ستړیا حس کړی او بې لدې چې وپوهیږئ مینه مو په واټنونو واټنونو څغلوي بې لدې چې لږ شانته هم ستړي شئ.

مینه هماغه څیز دی چې په زرګونو زرګونو کې یوکس غوره کوي او نوم یې په ویاړ تاریخ ته پاتې کیږي.

عشق دښکلا زیږوونکی دی او عشق د ځان ځارونې منځ پانګه ده دهرې بریا لپاره مینه له عاشق سره مله او ملګرې ده .

عشق رحمان جوړوي ، عشق خوشحال او حمید جوړوي.

عشق انشټاین جوړوي اډسن جوړوي ، سولون ، ارسطو او اپلاتون جوړوي.

که له تاسې سره دخپلې ژبې مینه وي ، دخپلې ژبې په قدر پوه شئ دهغې دبډایونې لپاره هڅه کوئ او هیله لرئ ترڅو ستاسې ژبه د نړۍ ترټولو ژبو ښه فصیحه ، روانه ، ښکلې او بډایه ژبه وي نو بې شکه چې ستاسې دا مینه او ورسره هڅه به تاسې هغې موخې ته رسوي چې په نظر کې یې لرئ ، او باور وکړئ دا ډیره خوږه مینه ده او دې ته رسیدل واقعاً له موږ څخه یو څه جوړوي.

خو داسې هم نه چې موږ نو نورو ژبو ته شا کړو او په رټلو یې پیل وکړو ، نه یوازې دهغې ژبې چې غواړو ویاندي یې وکړو او غواړو ښه ویاندي یې وکړو دهمدغې ژبې مینه او دنورو ژبو درناوئ او احترام هم په همدې مینې کې نغښتي دي.

## له خپلې موخې او مسلک سره مینه:

تاسې دهرې ارزو لپاره عاشقانه هڅه وکړئ دهرڅه د لاسته راوړلو لپاره دهرهغه څیز چې غواړئ ترلاسه یې کړئ په مینې سره هڅه وکړئ. که غواړئ چې ویاند جوړ شئ نه دا چې

وياندي وكړئ بايد ددې هنر عاشقان واوسئ ، لدې هنر سره مينه ولرئ هلته هرڅه آسانيږي هلته هره ستونزه هواريږي او ستاسې نيت به هم لدې ټولو سره مرسته وکړي.
سردار عالم او شفيع المذنبين فرمايي:
انما الاعمال بنيات و ...
او ياد سردار محمد داود خان خبره: تصميم د برياليتوب لمړى شرط دى.

۲- هوډ او کار:

د خوځښت لامل له خوځښت پرته يو بل څيز دى ، د خوځښت لپاره تر ټولو ښه لامل مينه ده عشق دى. هغه څوک چې عاشق وي او له ځايه نه خوځي هغه ريښتينئ عاشق ندى دزړه له تله عاشق ندى.
داسې شاعر به هم وي چې لسګونه ناليکلي او ناويلي شعرونه لري ،ليکوال به وي چې لسګونه ناليکلې افسانې به لري... که تاسې هم تصور کوئ چې د وياندى د هنر او مسلک عاشقان ياست خو لدې نه دا ښه بولئ چې لاړشئ د موټرونو کاروبار ولرئ ځکه هلته ښې پيسې دي نو تاسې پخپلې غوښتنې يو بل څه ته لوړاوئ ورکړ ځکه خو هم تاسې عاشق نه ياست. که ياست نو ريښتيني نه ياست ځکه پيسې کولاى شي ستاسې معشوق ته درسيدا په لاره کې خنډ شي. مقام هم همداسې کولاى شي ستاسې د مينې په لاره کې ديوال جوړ شي.
نو که داسې وي نو ستاسې د هلته په مخه ښه وي زموږ دلته.
که پدې پوهيږئ نو پس پاک اوسئ زموږ په هيواد کې د وينديي مسلک څومره عايد نلري لکه نور هر هنر ، لکه ښه ليکوالي لکه ښه شاعري لکه هر بل څه دا تاسې ياست چې دا خاوره او داژبه دربانديې حق لري ستاسې مرستې ته اړتيا لري او ستاسې کار او ښه کار ته سترګې په لاره ده.
تاسې کيداى شي چې د بازار له کار سره په لږ بلدتيا او آشنايئسره دورځې سلګونه او زرګونه افغانئ تر لاسه کړئ خو که غواړئ د هنر په ښودلو سره داکار وکړئ نو وبخښئ په بله راغلي ياست...

هغه څه چې هنرمند هنرمند ساتي هغه له خپل هنر سره مينه ده. اوس په ټوله دنيا کې د چالاکۍ وخت دی او پدې کار کې دبريااليتوب لپاره عاشقانه اراده او کار په کار دی زياته هڅه او په يوه ساده ژوند باندې بسنه. که بيامو ډير بخت ښه وو ورسره شهرت هم...
هوډ وکړئ او کار وکړئ...

۳–تمرين، تمرين، تمرين:

ښه غږ په کار دی او خلک يې خوښوي خو هنر ندی همداسې لکه د ښکلو سترګو درلودل، خو ښه غږ د هنر دوراندې کولو لپاره ښه وسيله ده. دښې وسيلې درلودل نعمت دی او له هغې ښه استفاده د يو ښه څيز دلاسته راوړلو لپاره ښه وسيله ده.
اوس شايد اجازه ولرو چې ووايو يو ښه ويانډ هنرمند دی. ځکه له ښې وسيلې يې ښه استفاده کړې يا لږ ترلږه د خپل کار يو پياوړی استاد دی.
په هر حال دا چې وکولای شو هره ښه وسيله ښه وکاروو نو بې له شکه تمرين ته اړتيا ده.
کمه به پيښه شوې وي چې موږ ښه وسيله ولرو او هغه بې کاره پريږدو په داسې حال کې چې نور يې دلرلو تمه او ارمان کوي.
دښو ويندويانو غږونه واورئ خو فکر مو وي چې دهغه مقلد او پيښې کوونکي نه شئ کولای شئ دهغوی غږونه ثبت کړی او وروسته يې دويل شوي څيز متن وليکئ تاسې به هله پوه شئ چې څرنګه يو ښه ويانډ له يو بد متن څخه ښه څيز ستاسې په مخ کې ږدي او بالعکس هم همداسې.
په هر وخت او فرصت کې خپل غږ ثبت کړئ او وايې ورئ او خپل عيبونه کم کړئ خو هيڅکله له ياده مه باسئ چې تمرين تمرين تمرين.

۴–مطالعه، مطالعه، مطالعه:

تاسې دکار په پيل کې ددې لپاره چې ښه غږ ولرئ او بريالی ويانډ وا اوسئ چې څومره کولای شئ دومره زياته مطالعه ولرئ.
ددې لپاره چې راديو او تلويزيون ته لاره پيدا کړئ، هرڅومره چې کولای شی هڅه وکړئ.
دا په اوريدونکو پورې اړه نلري. خو.. که په رينښتيا سره غواړئ چې دخوښې وړ ويانډ شئ

د هغه څه د قبلولو په ترڅ کې چې پورته وویل شول او هغه څه چې په راتلونکي کې به وویل شي ، له مطالعې باید بې خبره نه وئ.
مطالعه ، هرڅومره چې کولای شئ او په هرځای کې چې لاسرسئ ورته ولرئ. داسې مه وایئ چې وخت نلرم وخت مې کم دی بوخت یم. نیم ساعت به وروسته د سینما یا بل چکرځای ټکټ واخلئ یا به هم نیم ساعت وروسته فوټبال او ساتیرئ ته ووځئ او نور تفرحي کارونه هم داسې دا نیم ساعت په مطالعه ولګوئ.
کله چې د سینما یا حمام په صف کې ولاړ یاست کله چې په ملي بس یا بل ښاري موټر کې روان یاست ، کله چې له یو ځایه بل ځای ته سفر کوئ په موټر په الوتکه په هیڅ ځای کې خپل وخت هسې مه ضایع کوئ ، مطالعه وکړئ.
که کوم ځانګړئ پروګرام چلوئ یا د کوم ځانګړي پروګرام ویندوی یاست ، ترټولو ښه خبره ده چې په هماغه ځانګه کې مطالعه وکړئ خو هیڅکله هم له ادبیاتو مه بې خبره کیږئ. که تاسې د هرډول پروګرام چلونکی یاست خو بیا موهم بنسټ ادبیات دی. ځان د شعر او نورو ویوکو له سمې ښې سره آشنا کړئ.
بیلابیل متنونه ولولئ بیلابیلې لیکنې او کتابونه ولولئ دا کار په تاسې د ځانګړي اغیز سربیره له تاسې یو باتجربه ، او حاضرځواب کس جوړوي. مودب ، متواضع او د نظر خاوند کیږئ او ذده کوئ چې څنګه ولیکئ.
کله چې تاسې د یو پروګرام په اړه راپور وړاندې کوئ یا هم په سټډیو ، بهر په اداره کې کوم مجلس یا ناسته اداره کوی هلته به تاسې کم له کاغذ او لیکلو څخه استفاده کوئ. ستاسې د ذهن بډایي او حاضر ځوابي به ستاسې په کار کې د بیلګه کولو لامل شي. له پښتو ژبې او د هغې له قواعدو سره به ستاسې بلد تیا ستاسې په کار کې ډېره ګټوره وي. که تاسې یو قید د صفت په ښه ولولئ یا داسې نورې تیروتنې ستاسې لیدونکی او اوریدونکی به خپل رادیو یا تلویزیون بند کړي.

هغه چابک ځواب ورکړ.
هغه چابک ، ځواب ورکړ.
دلته وګورئ په لومړئ غونډله کې لولئ چې هغه چابک ځواب ورکړ یعنې هماغه کس ژر ځواب ورکړ ، خو پدې بله غونډله کې بیا هغه چابک کس ځواب ورکړی ځواب یې شاید کرار ورکړی وي خو دا کس چابک دی ، یو صفت دی...

تاسې هم په ډيرې مطالعې سره کولای شی د اسې ډيرې غونډلې پيدا کړئ او سمې بڼې يې ولولئ که څه هم زموږ په پښتو کې انشاالله چې ډير د اسې څيزونه نشته په نورو ژبو کې شايد د اسې ستونزې ډيرې وي خو بيا هم تاسې کوښښ وکړئ مطالعه به درسره لامرسته وکړي.
د اهيڅکله هم له ياده مه باسئ چې ستاسې اوريدونکی ياليدونکی ستاسې پروګرام ته ديوځل ليدلو وخت لري ، هغه کتاب نه لولي چې که کوم ځای يې سم ونه لوست نو شاته به لاړشي هغه به له سره واوري يابه پرې فکر وکړي. اوبله د امهمه مسله هم مه هيروئ چې هرڅه چې له راديو او تلويزيونه خپريږي هغه معياري ژبه بلل کيږي او هرويوکی چې کاريږي هغه د چاخبره نورنو ژبو ته هم لويږي. نو په همدې دليل ناسمه لوستنه بالکل ممنوع ده .
له نورو بهرنيو ژبو سره هم ستاسې بلدتيا په تيره بيا له عربي او فارسي ژبو سره ځکه چې زموږ له پښتو سره يې يوڅه اړيکې شته هغه به هم ستاسې له ښېلګه والي سره مرسته وکړي.
او بالاخره په ياد ولرئ چې:
راتلونکی په هغه چاپورې اړه لري چې هيله يې لري او په هغه ټينګ ولاړ وي.

## ۵- زغم او استقامت

ښايي په لومړيو کې تاسې وويا ست چې ويندويي آسانه ده خو کله چې دغه پړاو ته ننوزئ او په تمرين پيل وکړئ وروسته ښايي وويا ست چې نه ويندويي آسانه هم نه ده .
خو دا په ياد ولرئ چې ښه وياند هغه دی چې ډير وخت يې ويندويي کړې وي ، تاسې هم ډير زغم ولرئ ښآيي څوکاله وروسته تاسې ډير ښه وياند شئ ، په لومړي کال کې ښآيي له ستونزو سره لاس او ګريوان وئ ، خو دوه کاله وروسته ښآيي مسلط وياند واوسئ او څوکاله وروسته ښايي د هيواد په سويه مطرح او مشهور وياند جوړ شئ.
مخکې هم وويل شول ، زموږ په هيواد کې ويندويي لکه بل هر هنر عايد نه لري ، نو تاسې که مينه لرئ نو زغم هم ولرئ.

## دوهمه برخه:

لومړني ګامونه

وياند هغه څوک دی چې دليکوال لخوا ليکل شوي ، د ايډيټر لخوا ايډيټ شوي او د کافي ايډيټر لخوا کتل شوي او د پروډيوسر له نظره تيرشوي او بالاخره د ټولو زيارونو وروستی مسول دی چې هغه زحمتونه چې ايستل شوي دي هغه داوريدونکي په مخ کې کيږدي کيدای شي په لږ بې پروايئ سره ددغه ټولو کارکوونکو زيارونه په اوبو لاهو کړي .
وياند بايد هغه ټولګه چې ورته سپارل شوې ده او ټاکل شوې ده تر اوريدونکي ياليدونکي پورې يې وروسوي ، بايد په هغه توګه چې لازمه ده ورسوي.
اوريدونکی يا ليدونکی همدا وياند پيژني ، هغه له دې نه دی خبر چې داخبر چا ليکلی او چا ايډيټ کړی او ددې ټولو تر څنګ هيله لري چې وياند وروسره صميمي هم وي.
وايي چې يوه ليکوال به د خپلې هرې ليکنې په پيل کې د موسکا کلمه هم ليکله او د راډيو يوه بل ليکوال به تل له ځان سره خپل ملګری ستوډيو ته بوته او ورته يې ويلي و چې کله د هغه له خيرې موسکا ليرې شي نو ورو به يې د هغه غوږونه راکاږل چې بيرته موسکی شي.[1]
زموږ د غږ کيفيت او زموږ د بيانولو څرنګوالی دژبې په پيژندګلوئ او په ليکلي متن زموږ د تسلط ښودنه کوي او لدې هم مهم زموږ د شخصيت ښودنه کوي.
موږ په هغه غږ چې چيغې ته ورته دی او په ژوول شوو اوناسمو ويوکو سره څرنګه کولای شو نور د خپل مطلب درک کولو ته وهڅوو .
دخبرو په وخت زموږ د څيرې ناسموالی او د سر او لاسونو خوځول هم زموږ شخصيت داغي کوي اوهم مو خبرې بې اغيزې کوي.

[1] ډاکټر عيسی ستانکزی ، راډيويي پروګرامونه

موږ دیو پښتون په توګه کله چې یو خپل هیوادوال ته خبرې کوو ، باید زموږ بیان پاک ، فصیح ، اغیزمن او په یاد پاتیدونی وي بې شکه چې زموږ بیان به زموږ په شاوخوا خلکو او د شاوخوا ژبو په خلکو هم اغیز کوي.
زموږ ژبه زموږ د نیکونو مهم یادګار دی او زموږ د یووالي ترټولو ښه سمبول دی او زموږ دنده هم داده چې دهغې په ساتنه ، پالنه ، روزنه او بډایونه کې هم ترخپله وسه وسه هڅه وکړو .
زموږ په هیواد کې اوس په رادیو ګانو او تلویزیونونو کې په تیره بیا په دې مصنوعي رادیو ګانو منظور مې دا اف ایم یا طلوع مولوع دی پدې کې ویندویان په یوه غونډله ټینګار کوي پداسې حال کې چې ټینګار هلته نشته ، یاهم دغونډلې په منځ یا ناسم ځای کې مکث کوي د همدې لپاره راتلونکې بحثونه ګوښې شوي دي .

## ۱- په کلام باندې تسلط :

ویاند کله چې خبر لولي داسې یې باید ولولي چې اوریدونکی احساس وکړي دا خبر هغه په خپله برابر کړی دی او په هغه سیمه کې چې په اړه یې خبر لولي په خپله حاضر وو ، یاهم که سیاسي یا اقتصادي تبصره لولي اوریدونکی یا لیدونکی داسې احساس وکړي چې یو سیاسي یا اقتصادي کارپوه ورته خبرې کوي.
څه وار خو ددې شو چې تاسې پکې بند بند شئ او یاهم په ځینو ویوکو چې خپله یې هم په معنی نه پوهیږئ هسې تیز تیر شئ .
ځینې وخت به تاسې هم لیدلي وي ، زموږ په تلویزیونونو اوراډیوګانو کې ځینې ویندویان خبر لولي ، خو خپله نه پوهیږي څه لولم فکر یې بل ځای دی ، که تاسې ورشئ لږ وروسته ترې پوښتنه وکړئ چې د هغې فلانئ جملې مطلب څه وو درته وبه وایي چې زه ولا که پرې پوهیږم خو همداسې یې راته لیکلي وو .
کله چې سړی خپله په یو مطلب پوه نسي ، خپله و نه پوهیږي چې څه لولم او معنی یې څه ده نو بل به څرنګه و پوهوي ؟
د (په کلام باندې تسلط ) څخه هم مطلب دادی چې هغه څه باید ولرئ چې د متن ددقیقې معنی او مفهوم په لیږدونه کې اړ ټول صفات او مهارتونه ولري. په کلام د تسلط د پیدا کولو لپاره باید لومړی د شاعر یا لیکوال د جملو په معنی او مفهوم په بشپړه توګه پوه شئ

او ددې پوهيدلو لپآره بايد ترخپلې وسې او اندازې پورې مطالعه او تمرين ولرئ او وروسته د همدې صفاتو او مهارتونو د ترلاسه کولو لپاره وهڅيږئاو هڅه وکړئ چې هرڅومره زيات کيدی شي اوريدونکی د ليکوال په منظور پوه کړئ.
تاسې دليکوال ژبه يا ست هغه څه چې ليکل شوي تاسې يې تر اوريدونکو پورې رسوئ لومړی بايد تاسې پوهيږئ چې داڅه ليکلي ؟ او معنی يې څه ده؟ وروسته تاسې هغه ليکنه او هغه متن په ښه توګه تر اوريدونکي پورې ورسولای شئ ، ياپه بله وينا تاسې بايد اوريدونکی هرڅومره مو چې وس وي د ليکونکي مخې ته نږدې کينوئ.
تاسې تر اوريدونکي پورې دليکوال ياشاعر د ذهني مفاهيمو ليږدوونکي ياست ، که غواړئ چې ترټولو په ښه توګه د ليکوال مفاهيم او ذهني منځ پانګې تر اوريدونکي پورې ورسوئ نو دلاندې نکتې په غور سره ولولئ :

## الف: د ويوکو په سمه توګه لوستل:

ډير کله په راډيو او ټلويزيون کې داسې پيښه شوې ده چې وياند د يومتن په لوستلو کې ځينې ويوکې غلط لولي.
کومې کلمې چې اوس موږ ترې په ويلو او ليکلو کې کار اخلو ، نه زموږ په ځای پورې اړوندې دي نه هم زموږ په وخت پورې. دازموږ د پخوانيو يادګار دی چې زموږ په وخت او ځای کې دامانت په توګه پاتې دي او زموږ دنده هم ددې امانت په سمه توګه ساتل او ترخپلو راتلونکو نسلونو پورې يې د سمې او کره بڼې د وررسولو مسول يو .
موږ پوهيږو چې د پښتو ژبې په زرګونو کلونو هسکې ټيټې ليدلې دي او ځان يې ترموږ پورې رارسولی دی. هغه څه چې اوس لرو او دژبې په توګه يې کاروو او هغه څه چې نن يې زموږ ماشومان اوري ترڅو يې دهغوی ژبې وروستيو نسلونو او دهغوی بچيانو ته وو ايي همدا پښتو ژبه ده چې زما په نظر اوس له عجيبو ورځو سره مخ ده.
هغه څه چې د پروګرام په توګه له راديو ياتلويزيون څخه خپريږي او هغه څه چې په ليکلې بڼه په ورځپاڼو او کتابونو کې خپريږي ديوګل اندام تصوير دی چې له نګار څخه اخيستل شوې هينداره کې ښکاريږي.
هغه ژبه چې يو وخت لکه د کروړ غوندې کروړلې او د خوشحال خان دتورې غوندې تيزه وه اوس لکه په يوه عمومي لاره کې يوه زړه قهوه خانه هسې کاريږي ته به وايې چې موږ له لويه سره رحمان ، حميد ، او خوشحال خان نه درلودل..

مثلاً ماډیر لیدلي دي ، کرشک چې دهلمند یوه ولسوالي ده د ګاپ په زیر او د ش په زور سره لولي. زه دا مثالونه نشم راوړلای ځکه اوس مې یاد ندي خو تاسې دا طلوع ملوع او نه پوهیږم دا فلانی اف ام او فلانی اف ام او یاهم نړیوالې راډیوګانې ! لکه چین ، هند او ځینې نورې وا وریځ هلته به ژړا درشي.

یوه ښځینه ویانده پیژنم نه پوهیږم چې په طلوع کې ده که په اریانا تلویزیون کې پښتو کله کله څه وایي باور وکړئ چې یوه ورځ مې یې خبرې اوریدې ژړا راغله داسې یې دا پښتو سره ترپښو لاندې کوله تابه ویل چې بس تربښل دی غنم دي پرې ورتویږي او سره ټکوي یې.

یوبل ویاند هم په طلوع کې خبرونه وړاندې کوي ښه شاعر او پوه هم ځانته وایي تاسې یې ویندویي وګورئ او سم ورته ځیر شئ بیا فکر وکړئ چې له لویه سره یې په دې ټولو خبرونو کې په څو پوه شوئ.؟؟...

زیاتره ویوکي چې اوس موږ لرو ، له وینو او اورونو په ډکو پیړیو کې تر موږه رارسیدلې او روغ رمټ ... زموږ نیکونه مړه دي او اوس خاورې شوي دي خو ویوکي یې لا تازه ، رغند ګویا او په خپل حال پاتې دي. او نن همدا په خپل حال پاتې ویوکي له رادیو او تلویزیون څخه ساکن او بې غږه اورو داولې ؟ ؟

که چېرې په یوه میلمستیا کې کوم څه غلط تلفظ کړو ښآیي څومره اهمیت ونلري خو د رادیو او تلویزیون له میکروفونه څرنګه ؟ هغه وخت چې زموږ غږ میلیونونه کسان اوري هلته موږ حق نلرو ویوکي په غلطه توګه ولولو .که یولیکوال متن غلط ولیکي او تاسې هم د یولوستونکي یا دیو پروګرام دچلوونکي په توګه یوڅه غلطئ نورې هم پرې زیاتې کړئ فکر کوم چې هلته به نوشي له روژې ددوه میاشتو وروسته اچار...

کله چې یو ویوکی څوځله غلط ولوستل شو ، یا له مجبورئ په یوه جمله کې وکاریده دخلکو په تیره بیا دځوانانو په ذهن کې پاتې کیږي ، او له هغه بل نسل ته او که په همدې توګه وړاندې لاړ شي چې همدا اوس روان دی لیري نده چې دا ښېټ ، کروړ ، رحمان خوشحال او ... ژبه به کوم څیز شي یابه د یاجوج ماجوج له ژبې پرته بله څه نشي.

ای کاش ای کاش چې لیکوالو هم ډیره پاملرنه کولای !

د آریانا ټلویزیون خبرونه که وګورئ ، نو دې پایلې ته به ورسیږئ چې خواران یا له قحط رجال سره مخ دي یاهم له دري ژباړه کوي او یاهم نشي کولای ولیکي.

مثلاً په یو خبر شل ځله راځي ، په پایله کې داسې وشول ، یاهم نورې تیروتنې دي چې ځانته داحق نه ورکوم پرې خبرې وکړم ، ځکه زه غواړم یوازې د ویندویی په اړه خبرې وکړم خو

دې ټکي ته هم باید ترډېره پام او دقت وشي چې لیکوالان هم باید ترخپلې وسې پورې هڅه وکړي چې سم څه داوریدونکي لپاره د ویاند په لاس ورکړي.

ب :
د ویوکو یاکلمو د معنا اومفهوم او همدارازد هغوی ترمنځ د اړیکې په سمه توګه پیدا کول
.

تاسې یو ښه ویاند ته غوږ ونیسئ هغه چې کوم څه لولي تاسې یې ولیکئ او بیا یې وروسته په خپله له ځانه سره په خپله لهجه ولولئ ، هله به پوه شئ چې څرنګه ښه ویاند د کلمو او جملو حق ادا کوي.
هغه څه ویوکي او جملې چې تاسې ته دکاغذ په مخ درکړل شوې دي ، که یې په ځیرتیا سره ولولئ ښایي په لومړي ځل یې سمې اړیکې ونه مومئ.
او ځینې وخت خو یې که دوه دري ځله یومتن ولولئ ښآیي وروسته وپوهیږئ چې که مو په لومړي ځل لوستلای نو څومره به یې معنی په بله روانیدله.

ج :
دشعر له وزن ، قافیې او ادبي صنایعو سره بشپړه بلدتیا او آشنایي.
زیاتره وخت د نازکو ټکو دمعنا او مفهوم پیدا کول د کلمو په سمو پیلو پورې اړه لري او په شعر کې د ویوکو د اړیکو پیداکول د بیلابیلو وزنونو پیژندګلوي له نثر څخه په شعر کې زیاته بریښي.
د ویوکو سم ادا کول او لوستل یوه موضوع ده او د هغوی ترمنځ د اړیکو پیداکول بله موضوع او تر زیاتې اندازې پورې د پښتو ژبې له ګرامر سره ستاسې ترا شنایئ پورې اړوندیږي.
کیدی شي تاسې یو ویوکی په یواځې توګه سم او فصیح ادا کړئ ، خو باید ځیر شئ چې دهغه په سمه ښلولو او ارتباط کې هم بریالي وئ. کله چې تاسې شعر لولئ نو دا موضوع د بیلابیلو وزنونو او صنایعو له شتون سره زیاته مطرح کیږي ، چې داپخپله ددې دلیل دی کوم متن چې تاسې لولئ څه نثر وي څه نظم تاسې یې باید په معنی او مفهوم په بشپړه توګه وپوهیږئ.

خو که تاسې یو ویوکی غلط ولولئ دهغه تاوان له هغه څه ډیر زیات دی چې تاسې د ویوکو ترمنځ سم تړاو جوړ نشئ کړای که څه هم چې تاسې په غلط تړاو سره د جملې معنی معکوسه کړئ.
خو پداسې حالت کې څو کارونه کیږي: د یو ویاند په توګه ستاسې ابرو له خطر سره مخ کیږي او ستاسې په بې سوادئ او ناپوهئ دلالت کوي له بلې خوا اوریدونکی په هغه مطلب چې اوري یې او همدار راز ستاسې په رادیو یاتلویزیون خپل اعتماد له لاسه ورکوي مالړ وړاندې وویل زه اوس کله چې خبرونه اورم له بده مرغه له بده مرغه هلته تلویزیون هم راته چالان وي خو بیاهم زه دمهمو خبرونو لپاره بي بي سي یا آزادي یانورې رادیو ګانې اورم داولې دا ددې له خاطره چې په طلوع ملوع مو اوس اعتماد له لاسه ورکړی .
په هرحال که متن فصیح او روښانه وي که څه تاسې د ویوکو ترمنځ په هغه توګه چې لازمه ده ارتباط برقرار نشئ کړای بیاهم ستاسې اوربدونکی شاید د مطلب په معنی او مفهوم پوه شي خو که په یوه متن کې تاسې درې ځله یو ویوکی ناسم ولولئ ستاسې دا ناسم لوستنې به د اوریدونکي په ذهن تل پاتې اغیز وکړي ، مګرهلته چې ټول اوریدونکي پوه او ادبیات یې دومره قوي وي خو زه ډاډه یم چې هغوی بیا ستاسې رادیو او تلویزیون څومره نه ګوري او اوري او هرچیرته خپل فارغ وخت په کتاب لوستنه تیروي.
خووېندويي په تیره بیا زموږ او تاسې په هیواد کې له شعر ویلو څخه ډیره جدا نده. یعنې تاسې دیوویاند په توګه نشئ ویلای چې له شعر سره آشنایي او شعر ویل زما کار ندی.
که تاسې غواړئ شعر ښه ولولئ د تورو او ترنګونو په معنا او مفهوم په ښه توګه پوهیدواود ویوکو په سم درک سربیره باید د ادبي صنایعو سره هم مخ شئ او حتماً ځیر اوسئ چې په زیاترو ځایونو کې په شعري اړتیا سره ویوکي خپله اصلي بڼه له لاسه ورکوي او ځینې بدلونونه مومي.
فکر مووي چې دهرڅه په لوستلو کې ډیر دقیق واوسئ شونې ده ستاسې په ډیره وړه تیروتنه نیوکه وشي او مسخره مو کړي. هڅه وکړی په فارغو وختونو کې بیلابیل شعرونه ولولئ دهغې ادبي صنایع ، باریکئ کړه او سمې بڼې او همداسې نورې هڅې وکړئ ترڅود هر شاعر یا هر شعر په سمه توګه ولوستلای شئ.
دلته د پښتو ژبې شعرونه او نورې لیکنې ندي راوړل شوې چې مثال ورکړ شوی وای او تاسې هم متوجه شوي وی خو تاسې خپله باید ډیره مطالعه وکړی ، دډیرو ویوکو او ډیرو

بیتونو سمې او کره بڼې ومومئ همدارنګه تل هڅه وکړئ چې هرڅومره کیږي د پښتو ژبې ګرامر ولولئ اوذده کړئ ترڅو د جملو په اوډون ښه پوه شئ.

د :

په ویوکو بشپړ تسلط او لاس بری :

تاسې که د پرښتو د وزرونو په څیر نرم غږ ولرئ که د سپرلنیو مرغانو په نسبت خو ځله زیات ښه او ښکلی غږ ولرئ خو چې له ویوکو سره ښه آشنایي ونه لرئ او په هغو بشپړ لاسبرئ ونه لرئ هغه موټروان ته به ورته یاست چې د موټروانئ په مخصوصو جامو کې د موټر ځغلونې په نړیوالو سیالیو کې ګډون کوی خو په حقیقت کې د هغه موټر په یوه پرزه او کارونه هم نه پوهیږي . تاسې کولای شئ په مطالعه او تمرین ، مطالعه او تمرین او په مطالعه او تمرین کولای شئ هر ویوکی او ترنګ په جمله کې لکه ژابلې هسې په آسانۍ او مزې سره وژویاست. پرته لدې چې هغه مو له ستوني تیرې شي یامو هم له خولې بهر ووځي او یاهم په خبرو کولو کې کومه ستونزه پیدا کړئ...

کله چې تاسې د مطالعې او تمرین په مرسته چې ډیر ټینګار پرې وشو په متن لاسبرې شولاست تاسې به د متن له لوستلو څخه که څه هم دوه ساعته پرله پسې متن ولولئ ستړې نشئ بلکې د پوهې او ځواک د هغه احساس له مخې چې تاسې یې لرئ ستاسې بدن به د خوند او لذت څخه ډکیږي ، په تیره بیا چې د پروډیو سر نور هڅوونکي لاملونه هم ورسره شي نو له تاسې به په ټولنه کې یو پیاوړی او باسواده ویاند جوړ کړي.

اوس که غواړئ چې په ویوکو له خپله لاسبري او تسلطه خبر شئ نو خپل د ثبت ټایپ مو راواخلئ هغه څه چې زه درته لیکم تاسې یې ولولئ او ثبت یې کړئ ډیر ښه نو چمتو یاست:

- : داوونۍ اوه ورځې دادي: شنبه ، یکشنبه ، دوشنبه ، سه شنبه ، چهارشنبه ، پنج شنبه او د جمعې مبارکه ورځ.

اوس پام وکړئ چې د شنبه ، یکشنبه ، دوشنبه ، سه شنبه ، چهارشنبه ، پنج شنبه په ویوکو کې د ن توری درنه میم نه دی لوستل شوی ؟...

تاسې هڅه وکړئ همدارنګه ستونزې راټولې کړئ او په تمرین او څیړنې سره یې کره او سمې بڼې پیدا بیا یې سره یوځای کړی او څوځو ځله یې ثبت او واورئ.

په هرحال دا ستاسو ژبه ده چې ویوکي سره بیلوي ، او ویوکي باید ستاسې ژبې ته دوکه ورنکړي.

ر :

مناسبه لهجه او دويلو طرز:

ستاسې لهجه او دويلو طرز باید د ويوکي له معنی او مفهوم سره په متناسبه توګه تغير وخوري. یا په بل عبارت ددې ترڅنګه چې ستاسې غږ هیڅ ځانګړی او ټاکل شوی حالت نلري باید وکولای شئ هره لهجه او حالت چې مناسب وي ورکړئ ، دلته نو کابو یو هنر مند جوړیږئ. لاندې مثال ته ځیرشئ:

تاسې له خپلې میرمنې څخه پوښتنه کوئ: هلک ته دا درمل ورکړم ؟

میرمن مو په اوږدو چیغه کوي: ن............نه !

یعنې دهغې دا دويلو طرز ددې ښودنه کوي چې هیڅکله هم باید دا درمل ورنکړې.

او که ستاسې میرمن په لنډه او معمولي توګه ووایي: نه.

یعنې دا ددې ښودنه کوي چې نه اوس یې مه ورکوه یعنې وخت یې ندی.

اوس فرض کړئ له خپلې میرمنې سره مو خپل ماشوم ته د درمل په ورکولو کې د نظر اختلاف دی تاسې هم له هغې پوښتنه کوئ: دا درمل ماشوم ته ورکړم ؟ او هغه په پریکنده توګه وایي: نه !

یعنې په حقیقت کې وایي چې: نع

اوس دهغې دا لهجه تاسې ته څه معنی لري ښایي مفهوم یې داوي چې که د ماشوم ته دا دارو ورکړل نو زه به درسره جوړیږم.

بیا هم فرض کوو چې څو وختونه مو خپل ماشوم ته درمل ورکړي دي خو اغیزیې ندی کړی داځل بیا هماغه پوښتنه کوئ ستاسې میرمن داځل په سړه لهجه وایي: نه.

یعنې: پریږده یې نور دا درمل بې اغیزې دي.

وینئ چې یولنډ ددوه تورو لرونکی ویوکی څو ډوله معنی ګانې رامنځ ته کولای شي ، په یاد ولرئ هغه متن چې د پروګرام په توګه په واک کې لرئ شاید د ماشومانو لپاره کیسه وي شاید یوه ټوټه عرفاني شعر وي شاید طنز ، خبر او یا هم د بزګرئ په اړه درس وي. د یادو شوو توکو هریو ځانګړې لهجه او د ویلو طرز غواړي. تاسې کولای شئ په کومه لهجه چې د رحمان بابا شعر لولئ د کلیوالې روغتیا په اړه خبرې وکړئ ؟ کولای شئ په هغه مهربانئ

چې د ماشومانو لپاره کیسه لولئ سیاسي یا اقتصادي تبصره ولولئ ؟ یا هم خبر ولولئ. خو نه نشئ کولای.
زما په نظر دا ښه خبره ده کله چې تاسې یو غم انګیز مطلب یا شعر لولئ په ځان کې لږ کینه راپیدا کړئ او کله چې طنز یا خندوونکی مطلب لولئ په خپله مو هم په شونډو موسکا خپره وي.
په یاد ولرئ وړاندې هم ټینګار وشو چې کله مو د لوستلو لپاره متن چمتو کړ او په ټولو شرایط سربیره مو متن درک هم کړ نو دا هم بده نده ترڅو چې مطلب ثبت کوئ شعر یو ځل ثبت کړئ وایې ورئ حتی څو ځله یې ثبت کړئ او هرځل یې په دقت سره واورئ په لسم ځل به یوه شئ چې له نهم ځله مو ډیر ښه لوستلی دی خو یو به نو هغه وي چې ډیر به سترې یاست.
س :
په مهمو ویوکو او کلمو ټینګار:

هرمتن او مطلب د ځانګړي مفهوم او موخې لپاره لیکل کیږي چې نوموړې موخه او موضوع باید اوریدونکی ستاسې له خولې واوري. هغه باید په هغه څه چې ته او لیکونکی یې غواړئ د پوهولو لپاره وړاندې کړئ و پوهیږي.
په همدې خاطر لازمه ده چې په هغه ویوکو او کلمو چې د همدې موضوع او موخې د رسولو لپاره کاریږي هغه که خپله موضوع وي یا داسې څه چې د موضوع له رسولو سره مرسته کوي ستاسې په ټینګار او ادا سره تر اوریدونکو رسیږي لاندې مثال ته ځیر شئ:

بریالي له احمد سره په کوڅه کې لوبې کولې.
اوس پورته غونډله څلورځله ولولئ او هرځل په یوه کلمه یا ویوکي ټینګار وکړئ او وګورئ چې څرنګه مفهوم تغیر مومي:

بریالي له احمد سره په کوڅه کې لوبې کولې

یعني دا چې له احمد سره بل چا په کوڅه کې لوبې نه کولې بریالي ورسره لوبې کولې.

بریالي له احمد سره په کوڅه کې لوبې کولې.

يعني بريالي په کوڅه کې له بل چا سره لوبې نه کولې د هغه لوبې له احمد سره وې.

بريالي له احمد سره په کوڅه کې لوبې کولې.

يعني بريالي له احمد سره په کوڅه کې لوبې کولې بل ځای نه.

بريالي له احمد سره په کوڅه کې لوبې کولې.

يعني بريالي له احمد سره په کوڅه کې لوبې کولې هغوی بل څه نه کول يوازې لوبې يې کولې.
ځير شوئ چې ستاسې لفظي ټينګار په اوريدونکي څومره له اغيز ښندلای سي ؟
لاندې غونډله څوځله ولولئ او هرځل په يوه کلمه ټينګار وکړئ:

بالاخره به د جنګ له لمبو څخه يوازې افغانستان سرلوړی راوځي.
وبه ګورئ چې د هر ويوکي په پرتله به زيات يوازې د افغانستان په کلمه ټينګار ستاسې له پاره خوندور وي...

### ۲- لهجه:

موږ که د هرې سيمې يو ، که هره لهجه ولرو خو کله چې په راډيو کې خبرې کوو او ميليونونه کسان مو غږ اوري او هغه هم د بيلابيلو لهجو او سيمو وګړي ، نو موږ اړ يو چې په داسې لهجه خبرې وکړو چې ټولو ته د منلو وړ وي.
يو ويانډ چې په هره ژبه ويندويي کوي ، بايد په هغه په بشپړه توګه واکمن وي ، نه داسې لکه زموږ په هيواد کې بس که پښتون دی که فارسي ژبی خو چې هغه متن ولوستلای شي نور يې فکر ندی چې مطلب اوردو دی که پښتو خو بس ويانډ يې نور معلوم شوی دی. کله چې يو ويانډ په سيمه کې په دوو ژبو او لهجه خبرې کوي خو د بلې سيمې لهجه ولري نه

یوا ځې اوریدونکو ته یې د بیان درک ګرانیږي بلکې په هغه لهجه پورې به یې زیات اوریدونکي وهم خاندي.
ددې ترڅنګ به دې کمۍ لوبغاړو لپآره یو مضمون هم په لاس ورکړي ، که باور نه کوی د هندوستان پښتو رادیو ، دمسکو ، دچین او ځینو نورو راډیوګانو ته غوږ ونیسئ خندا به موراشي. په یاد مووي چې ښایي همدا لهجې دهغې سیمې په لهجو چې هلته هغه رادیو زیاته اوریدل کیږي اغیز وکړي. او دا اوریدونکو عادت شي.
زه یوه یادونه غواړم دلته وکړم او هغه دا چې باید ویندوی د پښتو هرتکی او هرتوری سم ادا کړی. اوس په ځینو راډیوګانو او ټلویزیونونو کې حتی په بي بي سي کې هم دا ناروغي لګیدلې ده چې فارسي ژبی راځې پښتو خبرونه لولي ، ښه فکر وکړئ چې فارسي ژبئ کولای سي د ټ ، ډال ، ړ ، ڼ ، ښ ، ږ ، څ او ځ یا نور توري هسې ولولي لکه چې یو پښتون یې لولي ؟ فکر نه کوم... او دا چاره د هغې راډیو محبوبیت کموي ځکه چې ویاند دومره مهم رول لري چې حتی خلک هغه راډیو یا ټلویزیون په ویندویانو پیژني .
همدا رنګه که په ټوله پښتونخوا کې یو پروګرام خپریږي. تاسې یې فرض کړی چې دکروندې په اړه دی او ددې پروګرام چلوونکی په سوچه خوستئ ژبه خبرې وکړي یا دځندراڼو یاد ټنیو یا نورو یاهم دبل ولایت یابلې لهجې نو په ننګرهار کې یو بزرګر به یې واوري خو فکر کوم چې حتماً به یو څه وو ایي چې داګوره کومه پښتو غږوې زه خو پرې نه پوهیږم همداسې که دهمدغه بزګر په لهجه په ټنیو کې خپرونې وکړې...

۳ –له اضافي غږونو او جملو پرته خبرې:
زموږ عادت دی کله چې خبرې کوو او په یو سم ویو کې کې فکر کوو نو د (آ) (اِ) (اوم) او... په ځیر غږونه باسو. زیاتره هم دغونډلې په پیل یا منځ کې د (نو) یا نورو په څیر جملې کاروو. چې دخبرو کولو له موضوع سره هیڅ اړیکه هم نه لري. او پایله یې هم دا اوریدونکي ستړي کیدل دي. او داسې ښودنه کوي چې ویاند دخبرو لپاره چمتووالی نلري یا هم په وینا مسلط ندی او زیاتره دوخت تیرول دي چې دا چاره به لامل شي چې ډیر ژر خپل اوریدونکي له لاسه ورکړئ.
په تیره بیا چې عادت مووي ځینې ورته ویو کې سره د او په وسیله وتړو او تکراري تکراري یې ووایو. که ویاند کرارې او سستې خبرې وکړي او دجملو پای هم همداسې پریږدي خو نو څه یې کوې هغه خوبه نو له بد هم بدتر شي.

دا پـه يـاد ولـرئ ، څـه پـه راديـو کـې څـه پـه تلويزيـون کـې څـه پـه اداره او دکارپـه ځـای کـې فصيحې روانې او له هه هو پرته خبرې وکړئ ترڅو مو خبرې اغيزمنې او تاسې هم ددرنـاوي وړ وئ.

### ۴- له ساه کښلو څخه سمه ګټه اخيستنه:

پوهيږئ چې هره دمه او ساه کښل دوې مرحلې لري: يـو ساه اخيـستنه بلـه سـاورکول. تاسې چې کله هوا اخلئ نشی کولای خبرې وکـړئ. ستاسې خبرې د ساايستلو پـه وخـت کـې دي يعنې کله چې تاسې ساوباسئ.
تاسې بايد پـه خپلـه سـاه ايـستنه دومـره مـسلط وئ چـې وکـولای شـی لـه خپلـې سـاه ايـستنې څخه زياته اندازه استفاده وکړئ. داکار په ډير تمرين سره شونی دی.
دا تمرينونه کولای شی په کتابونو او نورو ليکلو کې ومومی چې دلته زه نسم کولای دومره مثالونه درته راټول کړم چې تاسې پرې تکيه وکړئ نو تاسې ډيرې مطالعې ته اړيا ست.
خو تاسې له مورِ سره لاندې جملې هم لولئ:
داجمله پوه يوه ساه ولولئ:

: لومړنئ جمله بايد لنډه او پـه زړه پـورې وي ترڅو اوريدونکی يې پاتې برخه پـه ځيرتيـا او دقت سره واوري. '

داځل جمله لږاوږدوو:

البته دا چـاره ستاسـو پـه سليقې او ذوق پـورې اړونـديږي ممکنـه ده دغـه لنـډه جملـه يـوه هيجانی پوښتنه وي اويا داسې څه وويل شي چې اوريدونکی شک او فکـر کولـو تـه اړ کړي
,

---

[2] ډاکټرعيسی ستانکزی: د راډيويي پروګرامونو له کتاب څخه
[2] دراډيويي پروګرامونو کتاب

یا

که ستاسو په خیرې موسکا خپره وي ستاسو د آواز دوستانه او مینه ناک لحن به له ورایه جوت وي او دا به یو برغولی وي چې ستاسو غلطۍ پټې کړي ...

تاسې باید د هرډول لیکنې لوستلو ته چمتو وئ، د سا غوڅونکو، اوږدو جملو، غوڅو غوڅو جملو او داسې نورو ته. البته فکر مو وي چې کله کله متنونه په اوږدو عبارتونو سربیره سخت ویوکې هم لري. او ددې ټولو سره سره باید ستاسې د ساه او از څوک وانه وري، په ټول کې ویلی شو چې باید په خپله ساه په بشپړه توګه واکمن وئ.
او س هڅه وکړئ چې دا لاندې مطلب په لوړ آواز ووایئ او هڅه وکړئ چې په هره ساه سره ډیر ویوکي ولولئ خو روښانه او سلیس. دا کار ستاسې له تنفس سره مرسته کوي. تاسې کولای شئ هرځل خپل غږ ثبت کړئ او ځلونه ځلونه یې واورئ او خپلې تیروتنې سمې کړئ.

وړمې اوښکې پاکولې او ددروازې ترڅنګ یې غوږ نیولی وو، بېرته شاته روانه شوه او ټیکری یې لیرې کړ ویښتان یې سم کړل، او دغولي په منځ کې اوږده وغځېد له مخ ته یې دواړه لاسونه لپه ونیول، په ژړا یې له ځانه سره ویل:
دا اکبر څه د شرم لوښی دی، کاشکی زما سم ورور وای، کاشکې یو ځل مې پلار ته راغلی وای او مینه یې ورکړې وای د پلار همدا یو ارمان دی چې یو ځل اکبر ووینې، او ورته وژاړي... [4]

دا د کیسې یوه برخه ده، کله چې تاسې بل ډول مطلب ثبت کوئ، بیا اړیاست د تورو په ادا کې بل ډول شئ:
مثلاً دا ولولئ او ثبت یې کړئ:

انسانانو له وړاندې څخه کوښښ کاوه او تلوسه یې درلوده چې د ځمکې او نورو مخلوقاتو په اړه وپوهیږي، د همدې موخې لپاره یې له ډېرو وړاندې څخه په خیړنو او موندونو لاس پورې کړیدی چې دډیرخه په موندلو بریالي شوي هم دي، تردې چې نن د سیارو په موندلو او په هغه کې د ژوند کولو په فکر کې دي، هوا ته خپل مالوماتي توکي

[4] د عبدالله الهام جمالزي د هندي خالونه لنډو کیسو له ټولګې د مساپر کیسې یوه برخه

استوري او د ځمکې مالومات راټولوي. خو دا چې د څېړنو په لړ کې هم پوهانو او ستورپیژاندو داسې وسیلې درلودې کنه؟، کوم چې پوهان او ستورپیژندوکي نن ورځ ترې ګټه اخلي؟ سړئ له حیرانئ سره مخ کیږي.

تالس د پخواني یونان لوی ستوري پیژندونکی د لمرنیوني (کسوف) له یوې پیښې د میلاد څخه ۵۸۵ کاله وړاندې وړاندوینه کړې وه، چې دا موندنه د تلسکوپ له موندنې تقریباً د ۲۰۰۰ کاله وړاندې خبره وه.

خو پخوانو څېړونکو د تلسکوپ په ځای نورو سایل د لمر، ستورو او سیارو د کچې او اندازې دا خیستلو لپاره درلودې.

همدا رنګه لمړنی کس چې له میلاد څخه ۲۶۰ کاله وړاندې یې د لمر په چورلیځ د ځمکې د ګرځیدلو خبره کړې وه یوناني ستوری پیژندونکي (آریستارکوس aristarchus) وو، خو د هغه وخت زیاترو خلکو باور نشو کولای چې ځمکه به هم خوځښت لري تر څو ۲۰۰۰ کاله وروسته په ۱۷۲۸ کال مالومه شوه چې هغه بیښتیا ویلي وو. جیمز براډلي (James Bradley) انګلیسي ستوري پیژندونکي د یو لوی تلسکوپ په وسیله جوته کړه چې ستوري ډیر کرار خوځښت لري ځکه نو ځمکه هم په خوځښت کې ده او د لمر په چورلیځ چورلیږي.

همدا رنګه د ځمکې د لویوالي په اړه خلکو رنګارنګ فکرونه کول له میلاد څخه ۲۴۰ کاله وړاندې یوناني ستوري پیژندونکي (آراتوزتنس) د ځمکې د چاپیر په دقیقه محاسبه کار کولو، چې په هغه وخت کې هیچا هم دا فکر نه کولو چې ګواکې ځمکه به دومره ارته وي ...

خو دا څیزونه یواځې هغه د چاخبره سخت توکي یعني ادبیات یې کمزوي دي تاسې د تکړه لیکوالو متنونه، سخت، ادبي، سیاسی او نور متنونه پیدا کړئ او پرې تمرین وکړئ دا څیزونه کم دي او تاسې نه شئ کولای چې یواځې په همدې تکیه او بسنه وکړئ تاسې پراخې مطالعې وکړئ، او له رنګارنګ لیکنو سره ځان آشنا کړئ.

### ۵- د غږ آهنګ:

---

د عبدالله الهام جمالزي د فضایي موندنو له راټولو شوو مطالبو څخه

هرکتاب چې مو زړه غواړي ولولئ ، هرډول تمرين چې اړياست ترسره کړئ. په ورځ کې لس يا سل ځله خپل غږ ثبت کړئ او وايې ورئ. هرڅومره چې زړه مو غواړي کار وکړئ. د ويندويۍ لپاره بايد ستاسې غږ خوښ کړ شوی وي. تاسې د اړې د ګر ګر په شان څرنګه يو متن لوستلئ شئ ؟ يا به څرنګه د متن په اړه خبرې وکړئ ؟ تاسې څرنګه په هغه غږ چې لکه د يو نامنظم ماشين په څير دئ په چا کې نفوذ کولای شئ ؟ يو اځې يو تود او دښه اهنګ لرونکی غږ کولای شي په اوريدونکي کې نفوذ وکړي.

موږ اوس هم په راديو او تلويزيون کې ډير داسې ويندويان لرو چې ډير بد غږ لري خو اوس هم هغه دي پروګرامونه وړاندې کوي. خو تاسې بايد خپل غږ وروزئ او وېې ازمويئ.

زمري او پړانګان ، خرس او مار ، کوترې او خره روزي او هغه هڅوي ترڅو حيرانوونکي حرکات وړاندې کړي. ډير خلک په زيات تمرين سره داسې حرکات ترسره کوي چې شادي يې هم نشي کولای.

موږ ک وروزي او په راکټ کې يې هوا ته استوي ، سپی روزي چې څرنګه خپل نوم وليکي او يا پيانو وغږوي او ... موږ څرنګه پدې ټولو دباور سره سره نشو کولای چې په خپل غږ کې ښه والی راولو يا خپلې اشتباه ګانې ليرې کړو .

ګرانو دوستانو : خپل غږ وروزئ. او د خپل غږ په مټ خپل اوريدونکي بلې نړۍ ته يوسئ دا کار ډير لوی کار دی او ډير ښکلی.

ښه فکر وکړئ پښتو څومره ښکلې کلمې لري څورمه درنه او خوږه ژبه ده ، داهم را سره منئ بيانو ولې هڅه نه کوئ چې ويندويې يې هم هماغه ډول خوږه او سليسه وکړئ ؟

او بالاخره بايد ترټولو ښه ويناند واوسئ.

### ۶ – د غږ حالت:

مايوه ويانده ميرمن پيژندله چې بې له مبالغې يې په راديوګانو او تلويزيونونو کې ترټولو ښه او ښکلی غږ درلود ، خو کله چې به مې يې غږ اوريده داسې احساس به مې کاوه چې ددې ميرمنې په سينه د ټولې دنيا غمونه پراته دي. د هغې ښکلي غږ يو قسم غمجن حالت درلود چې يو اځې د غمجنو متنونو سره لګېده.

هغې به عاشقانه غزلونه ، مرثيې او غمجنې کيسې په جادويې توګه لوستې خو هيڅکله يې هم نه شو کولای خبرونه يا يو کمډي مطلب يا طنز په اغيزمنه توګه ولولي.

دوه هم داسې ویاندان وو چې غږونه یې تردې بریده کمدې ته برابروو چې که مو د ننګیار ناآشنا کوم طنز یا نورو لیکوالو کومه خندنۍ لیکنه ورکوله هرڅومره چې یې لوستلای تاسې به یې د بیا اوریدلو تمه کولای خو که د ورته یوه مرثیه ورکولای او هغوی لوستلای نو په هغه وخت کې به زه وایم چې خپله مړي هم ورته خپله خندا نشو قابو کولای.
ستاسې غږ باید د ښه آهنګ ترڅنګ له هرډول ځانګړي حالت څخه پاک وي. ستاسې غږ باید داسې چمتو وي چې په هره ښه چې لازمه وي په هر پروګرام او هر رول کې چې وئ نو سم او مناسب حالت ورکړئ.

٧ - د ویلو په چټکوالي (سرعت) کې تغیر:

تاسې چې کله د یو متن په لوستلو بوخت یاست، ددې لپاره چې اوریدونکی زیات ځانته راکاږئ او هرڅومره یې زیات په ذهن په کې نفوذ وکړئ او د لیکوال پیغام ترټولو په سمه ښه وررورسوئ باید لکه یو بالرین هسې عمل وکړئ.
بالرین پخپله ځانګړې محدوده کې کله په خپله شاوخوا څرخي، کله منډې وهي، کله دریږي، کله هوا ته پورته کیږي او په همداسې حالاتو کې خپل هنرونه ننداري ته ږدي چې په ټول کې ښکلي او په زړه پورې ننداره وړاندې کوي.
حیرانیږئ مه، زه نه وایم چې تاسې د متن د لوستلو په وخت هوا ته پورته شئ یا په خپل شاو خوا وڅرخیږئ یا هم خپلې پښې تر اوږه واړوئ تاسې د خوځښت په ځای ویو کړئ او غونډله لرئ او د خپل اوریدونکي د راکاږلو لپاره اړیاست چې کله یې وځغلوئ کله یې کرار کړئ کله یې له معمولي نه هم کرار ولولئ.
تاسې په خپل ورځني ژوند کې په طبیعي ډول دا موضوع رعایتوئ. کله چې غوسه وئ او دعوا کوئ په چټکۍ سره خبرې کوئ او په لوړ آواز غږیږئ او کله چې غواړئ یو ماشوم ته نصیحت وکړئ نو په شمیر خبرې کوئ او په آرامه توکه...
لاندې عبارت ژر ژر او یو ډول ولولئ:
کله چې له دغه پیاوړي ویاند څخه پوښتنه وشوه چې د ویاند مهمه دنده څه ده؟ ځواب یې ورکړ: اوریدونکي ته د لیکوال د افکارو په ښه توګه لیږدونه.
اوس نوموړی عبارت بیا ځلي ولولئ خو وروستی غونډله آرامه او په شمیر بیان کړئ:

کله چې له دغه پیاوړي ویاند څخه پوښتنه وشوه چې د ویاند مهمه دنده څه ده ؟ ځواب یې ورکړ: اوریدونکي ته د لیکوال د افکارو په ښه توګه لیږدونه.
اوس فکر وکړئ چې کوم ځل ستاسې لپاره قانع کوونکی وو .

تاسې دخبرو په چټکوالي کې دتغیر په وسیله چې دا هم په خپله یو ډول ټینګار دی کولای شئ مهم ټکي پیاوړي وښایاست او د اوریدونکي په ذهن کې یې ښه ځای په ځای کړای شئ او همدا خبره ده چې ستاسې د دندې یوه برخه یعني په ښه توګه تر اوریدونکي پورې د لیکوال دافکارو وروسول به مو ادا کړې وي.
یادونه کوم چې په په مهم غونډلو او ویوکو ټینګار یو هم په خپله د سرعت تغیر دی.
دریتم دا تغیر د فیلم په موسیقۍ کې هم شته دی ، تاسې یوه د ښار او تیښتې صحنه او بله د سمندر په غاړه د یوې غمجنې جینۍ دقدم وهلو صحنې په یاد کړئ.

اتم:
دغږلوړول او ټیټول:

دغږلوړول او ټیټول بې له شکه ستاسې په غږ کې اغیز لري. تاسې ټول متنونه او ټول شعرونه هسې نه شئ لوستلای لکه یوه ګاډۍ چې په هموار سړک په داسې حال کې چې ګاډیوان یې هم خوب وړی وي په یوډول ولولئ. هماغه ډول چې په ځینو ویوکو او غونډلو ټینګار پکار دی ، دغږ تغیر هم له شک پرته اړین دی .
ستاسو غږ باید د اوریدونکي په وجود کې اغیز وکړي. اوریدونکی باید قدم په قدم په تاسې پسې لاړ شي. په متن کې دموجودو خندګانو سره وخاندي او په خپګانونو یې خپه سي . ستاسې له متن او لوستونکي مضمون سره باید اوږه په اوږه روان وي او هرڅه چې ستاسې په متن کې تیریږي هغه هم حس کړي.
داستاسې دنده ده چې لکه یو هنرمند بې روحه کلماتو ته روح وبخښئ او هغه په ژوندۍ توګه داوریدونکي د غوږونو له لارې تر هغوی وروسوئ.
راځئ بیا هم له خپل ټیپ څخه کار واخلئ دا لاندې غونډله په یوډول ولولئ.

ددې پـه انتظـار چې څوک ورپرانيـزي او مالـه دې بلاوژغـوري دوره ترځنـګ مـې سـترګې کلکې پټې نيولې وې. چې ناڅاپه ورد کوڅې دشر او شور په غږونو پرانستل شو او سترګې مې وغړولې چې نه هم بلاوه او نه هم دسپينو جاموارو[6].

نه ، نه ټايپ مه بندوه ، داځل همداغونډله راواخله او داځل يې داسې ولوله چې هغه لمړۍ برخه يې په ويريدلي غږ ولوله او دوهمه برخه داسې ولوله لکه چې ته هم لـه هماغسې وخت سره مخ شوی يې ، يوځل ويريدلی يې او بياد نجات ميندلئ دی.
تاسې په دې برخه کې ډيرې کيسې ولولئ ډيربيلابيل متنونه ولولئ ترڅو بريـالي شئ چې د اوريـدونکي احسـاسات هم خپـل کـړئ ، پـدې وتـوانيږئ هغـه څه چې تاسـې وايـاست هغـه اوريدونکی هم حس کړي ترڅو په ښه توګه دليکوال ليکلي تراوريدونکي پـورې ورسـولای سئ.

**نهم:**

### له هرې مهمې خبرې وروسته ځنډ کول:

کله چې غواړئ يوه مهمـه غونډلـه يا عبـارت ولـولئ ، او ددې لپـاره چې لمړۍ جمله مـو لـه راتلونکې جملې سره ونه نښلي لږ ځنډ وکړئ.
خپل اوريدونکی وپوهوئ چې غواړئ يوه مهمه جمله ووايـاست ، اوريدونکی داسې چمتو کړئ او داسې يې ليـوال کـړئ چې پخوانۍ خبره يـې پـه ذهـن کې پـاتې ده او چمتـو دی چې ستاسې راتلونکې جمله هم په ډيره ليوالتيا واوري او په ذهن کې يې ښه پاتې شي.
همدارنګه کله چې مو خپله مهمه خبره وکړه نو بيا لږ شانته ځنډ وکړئ ترڅو مو خپلې مهمې جملې ته چې غوښتل مو بيان يې کړئ بشپړه خپلواکي مـو ورکـړې وي او دافرصت بـه داهم وکولای شي چې هغه جملې او خبرې يې ټولې په ښه توګه په ذهن کې پاتې شي ، او پـدې بـه هم وپوهيږي چې ستاسې دا خبره يعنې ستاسې هغه مهمه خبره چې غوښتل مو پـه ښـه توګـه يې وروسوئ جلا وه او دا مخکې وروسته ځنډ هم دهمدې جملې لپاره وو ، پداسې حال کې چې هرې خبرې مو شايد ځانګړې معنی او موخه درلوده.

---

[6] عبدالله الهام هندي خالونه لنډې کيسې ټولګه د پيريان د لنډې کيسې يوه برخه

مثلاً تاسې غواړئ چې خپلو هیوادوالو ته یوه مهمه خبره وکړئ او مهم مطلب وړاندې کړئ نو داسې پیل وکړئ:
ګرانو هیوادوالو !...
دلته لږ ځنډ وکړئ ترڅو اوریدونکی مو خبرو ته تلوسه پیدا کړي. دوام ورکړئ:
نن زموږ په تاریخ کې یوه له ویاړونو ډکه ورځ ده...
لدې ځنډ سره اوریدونکی نور هم لیواله کیږي او نوره یې هم ستاسې دراتلونکو خبرو لپاره تنده او تلوسه زیاتیږي.
نن هغه ورځ ده چې زموږ هغه پلرونو او نیکونو چې نن یې هم زموږ په رګونو کې وینې بهیږي دهغوی وینې په جوش راغلي دي...
تاسې نور اړنه یاست چې دهرې جملې په اول او آخر کې بیا بیا ځنډونه وکړئ بلکې په خپله پوهیږئ چې نور نو باید مطلب ته په کومه لهجه دوام ورکړم او بې له ځنډه خپلې راتلونکې خبرې پسې وغزوئ.
پام مو وي ځینې وخت چې دکومې ملي ورځې په اړه خبرې کوئ یاهم کومه مهمه مسله وي اوتاسې یې په اړه راپور وړاندې کوئ یاهم مقدمه لولئ چې خبرې درنه په چیغو بدلې نشي اوریدونکئ له ویرې خپله راډیو بنده نه کړي داچاره پخوا زیاته وه او اوس یوازې په ملي راډیو ټلویزیون کې دوام لري چې هغه داړتیا په خاطر ده.
په هرحال دا جهادي راډیوګانو او هغه کسانو چې غوښتل به یې دخلکو له احساساتو کار واخلي هغوی به په راډیوګانو کې چیغې وهلو ته مخه کړه اوس هم زه په یوه راډیو کې یو ویاند پیژنم چې کله به زه ورسره ستوډیو ته لاړم نوزه به یې له قوارې څخه ویریدلم داسې به یې له دې جملو سره پهلواني کوله.
زموږ په ملي راډیو ټلویزیون کې ځینې پخواني ویندویان شته چې په دې چاره کې ډیر وتلي دي او کولای شي هان په رګونو کې وینې په ځوښ راولي چې دا ډیر لوی هنر دی ، خو باید پام وکړو یوځل بیا یادونه کوم چې خبرې رانه چیغې نشي او خپل اوریدونکی ونه ویروو.
دالاندې شعر ولولئ چې تاسې یې څرنګه لولئ:
البته د استاد ناشناس دویلو طرز پریږدئ هغه له یاده وباسئ داسې حس کړئ لکه چې د خپل اولسمشر او نورو وطنوالو په وړاندې له سټیج څخه دراډیو اوریدونکو ته وینا کوئ:
زماقندهاره !... دزمرو وطنه
زمادسرکشو پشتنو وطنه.

څومره ياغي يې !... صدقه د سمه
زما د سرکشو توريالو وطنه.

همداسې جملې او همداسې مطالب او همداسې شعرونه راټول کړئ او بيا درسره ټيپ هم کيږدئ هله يې څو څو ځله ثبت او واورئ د هرځل په نسبت بل په احساساتي او ځنډ مراعات کړئ چې څرنګه کيږي.

## د غږ متانت:

خپله به مو هم ډير خلک ليدلي وي ، ځيني خلک دي ډيرې ژر ژر خبرې کوي ، حتی شونډې يې سره نه شئ بيلولای چې اوس يې شونډې وتړل سوې که پرانستل سوې. ځينې خلک به مو ليدلي وي اوږدې اوږدې خبرې کوي او هرې بلې خبرې ته به يې انتظار باسئ.
دلته يو څه غواړم ووايم هغه دا چې يوه ورځ يوه غونډه وه ډير خبريالان راغلي وو ، يو چارواکي خبرې کولې ډيرې آرامې خبرې يې کولې له هرې خبرې وروسته به يې يوه دمه کوله بيا به يې بله خبره کوله. په پای کې ترې دغونډې وياند مننه وکړه ويل يې ډيره مننه چې خپلې عالمانه او ګټورې خبرې مو ګډونوالو ته واورولې ، زما د څنګ خبريال سره ونښوريده ما ته په غوږ شو ويل يې له موږ څخه مننه چې دا درې درې متره خبرو ته مو يې غوږ ونيولو ، يو عالم بايد په متانت سره خبرې وکړي ترڅو د درک وړ وي.
تاسې هم بايد که کار موويندويې هم نه وي بايد متانت ولرئ ، جملې او عبارتونه ستاسې په واک کې دي کولای سئ لکه توپ هسې يې پورته پورته کړئ او چټک چټک پرې تير سئ کولای سئ آرامې يې ولولئ ډيرې آرامې يې ولولئ او کولای شئ چې په متانت سره يې په مناسبه توګه ولولئ او ښکلې لهجه او آهنګ ورکړئ .
تاسې ولې ديو متن دژر ژر لوستلو لپاره بيړه کوئ ؟ او يا هم د څلور بيته شعر لپاره دومره پس پس کوئ خپل کلام ته مو شخيصت او مقام وبخښئ ، پريږدئ چې ستاسې خبرې د اوريدونکي تحسين او پام ځانته راوګرځوي.
هماغه ډول چې خپل زوی يا خپل کشر ورور مو په پام کې وي چې درونډ خوی ولري او ډيره مينه ناک وي هماغه راز مو خپل غږ ته هم پام وکړئ او ښه يې نازوئ. ستاسې غږ ستاسې د شخصيت او بلد تيا ښودنه کوي. خلک هم دهمدې غږ په وسيله پيژني او که هغه د چا خبره

پروپیشنل ویاند وئ نو ژوند به مو دهمدې ویندویۍ په وسیله تیریږي ، نوولې یې باید ونه روزئ.
پخوا یوه ورځ په کور کې ناست وم راډیو مې نیولې وه ، ویاند د کاروان صیب یو ډیر ښه شعر غوره کړئ وو ، زه هغه وخت په لیسه کې وم نه په ویندویۍ پوهیدم او نه هغه وخت ددې څیزونو وخت وو . شعر ډیر ښکلی شعر وو ، خو کله چې یې لمړئ فرد ختم شو نو ویاند په پس پس پیل وکړ راتلونکی بیت یې ددې لپاره چې بیا پکې تیروتنه ونه کړي هغه یې یوځل له ځانه سره ولوست خو زه ښه پرې پوه شوم او راتلونکي بیت اوریدلو ته مې یې نوره لیوالتیا نه درلوده خو کله چې یې په بیت لوستلو پیل وکړ باور وکړئ چې له ډیرې غوسې مې راډیو بنده کړه ، ځکه کوم منظور چې د شاعر وو هغه یې یوور بلې خوا ته سره ګډوډ یې کړ له بلې خوا یې غږ داسې بې متانته او بې خوږو وو چې تابه ویل په کومه کوڅه کې ولاړ دی او له ځانه سره هغه د چاخبره بابولالې وایي.
که دا ځینې سپارښتنې مو په نظر کې وي او له خپل غږ سره هم ډیر کوښښ وکړئ ویې روزئ نو د خپل غږ له متانت سره به مو مرسته کړې وي.
خو ... ریښتیا مطالعه او تمرین هیڅکله له یاده مه باسئ.
او په پای کې به یوه بله یادونه هم وکړم هغه دا چې ګورئ پام مو وي اوریدونکی یوا ځې په دوه وختونو کې غواړي چې جمله بیا واوري یو دا چې په مفهوم پوه نشي بل دا چې خبره ډیره پرې خوږه ولګي.
نور خپله پوهیږې.

## دریمه برخه:

### دمتنونو ډلبندي

ټول متنونه چې له راډيو يا ټلويزيون څخه خپريږي ، بايد يوا ځې يو وياند ونه لولي بناسي ځيني داسې متنونه وي چې که ښځينه وياند ه يې لولي داوريدونکي يا ليدونکي خوښ نشي ياهم داسې متنونه وي چې که نارينه يې لولي ښايي له سره هغه دچاخبره شرم وي.
پخوا هم وويل شول ځينې متنونه لکه خندني ، ډراجيډي ، سياسي ، ټولنيز او يانور هريو ځانګړې لهجه او دويلو طرز ته اړتيا لري. چې په خواشينئ سره به ووايو زموږ په راډيوګانو او ټلويزيونونو کې بس ټول متنونه يوکس يايو وياند ياويانده لولي او توپير ورته نه لري.
خو دې ټکي ته بايد پروډيوسران او جوړوونکي ډير ځير وي چې ښايي دداسې بې غورئ پايله سخته وي او اوريدونکي ياليدونکي له لاسه ورکړي.
ايرانی ليکوال حسن شيدا متنونه په درې ډوله ويشي:
١ نارينه متنونه
٢ ښځينه متنونه
٣ خنثی متنونه
خو کېداى شي پدې درې ډولونو ځينې نور ډولونه لکه ماشومانه او ګډ متنونه هم زيات شي چې ددغه متنونو په نظر کې نيول هم ډير اړين او زموږ په راډيو ټلويزيون کې ورته له سره پام نه کيږي.
ځينې شعرونه شته چې سړی فکر کوي چې يوا ځې يې له اکبر ايازي[7] څخه واوري نو خوند به تري اخلي لکه دکاروان ، جهاني او يانورو تکړه شاعرانو شعرونه ، خو ځينې وخت که هماغه شعر ښځينه وياندې ته ورکړل شي ښايي له هغه هم ډيرخوند واخلو .

---

[7] دافغانستان د راډيوټلويزيون تکړه او وتلی وياند چې اوس په آزادی راډيوکې کار کوي.

د کاروان صیب هماغه شعر چې درانه ایازي صیب ویلی دی (هغه دنګه جینئ ) که ښځینه ویانده یې ولولي ښایي پرې وهم خاندو مګرځینې شعرونه که بیا نارینه ویاند ووایې هم همداسې ، ځکه یو خو له سره نارینه او ښځینه احساسات توپیر لري بل غږ له هرڅه زیات دشعر په اغیز کې رول لوبوي.

په نثر کې هم باید په بشپړه توګه دا څیزونه مراعات شي ، یواځې شعر هم شرط ندی ،کله کله زموږ په راډیو ټلویزیون کې داسې هم شوي دي چې ښځې ته هیڅ ونډه نه ده ورکړل شوې او حتی په هغه پروګرامونو کې چې دښځینه وو لپاره خپریږي هم نارینه ویندویې کوي چې دا دپروګرام په اغیز کې کمی راولي.

یاهم ځینې وخت داسې شي لکه د آزادئ راډیو یو پروګرام چې نه پوهیږم اوس به خپریږي کنه (دستورو سیند ) واقعاً ښه پروګرام وو ، ډیرو درنو او تکړه خویندو چلاوه ، واقعاً ښه شعرونه یې ټاکل او ښکلي به یې لوستل ، خو کله کله به داسې شعرونه پکې خپاره شول چې نارینه ویاند ته به یې اړتیا درلوده ، خو دهغوی ډیرو هڅو او ښه نیت پدې پرده اچولې وه خو باید په راتلونکي کې دغه څیزونو ته ډیر پام وشي.

دنثر برخه هم داسې ده ځینې متنونه شته چې باید ښځینه ویانده یې ولولي او د نارینه په ویاندئ سره خپل خوند له لاسه ورکوي ،یاهم سرچپه.

دماشومانو کوم پروګرامونه چې دي باید ویاند دماشومانو په ژبه خبرې وکړي دماشومانو د احساساتو په ژبه خبرې وکړي.

که څه هم تراوسه زموږ په ټلویزیونونو او راډیوګانو کې دماشومانو لپاره پروګرامونه کم دي خو کوم چې شته هم دي د ویندویې کیفیت یې کمزوری دی ، د دغه پروګرامونو ویندویان باید داسې خبرې وکړي لکه دماشومان نازک او خواږه احساسات ، لکه دهغوی په ژبه د ببګا کیسې.

خو زموږ ویندویان داسې خبرې ورته کوي ته به وایې چې ښه لوی لوی ګمراهان یې پروګرام ګوري او دوی ورته لارښونه کوي ، کله هم په تیزئ خبرې کوي کله یې هغه موسکند لحن له یاده وتلی وي کله هم پیچلي کلمات کاروي. چې ماشومان ښایي په هغه کلماتو له سره ونه پوهیږي یابه هم له مور او پلار نه مرسته غواړي.

یوه ورځ دسلام وطنداره پروګرام خپریده ، دماشومانو لپاره وو ، زما دیوملګري کوچنی زوی هم ورته ناست وو ، ښه ورته ځیر وو ، هره خبره یې دزړه په غوږونو اوریده ، په راډیو کې دماشومانو په اړه خبرې کېدې ، خو کله به چې ماشوم ټنډه تروه کړه (غوسه به ورغله )

نو زه به راډیو ته ځیر شوم ویاند به چې کله لږ سخته کلمه وکاروله هغه ته به غوسه ورغله او کله به چې ویاند وویل چې ګلونو ماشومانو یا... نو ماشوم به موسک شو.
همدارنګه څوکسیز متنونه ځینې متنونه دي چې څوکسان یې لوستلای شي، مثلاً د کیسو غوندې متنونه چې راوي هم پکې وي او د کیسو یو یادوه کرکټرونه هم.
یاهم کومه ژباړه وي لکه ګردي میزونه چې باید بیلابیل غږونه پکې وي. یاهم نور داسې پروګرامونه چې د څوکسانو دخولې ویلې څیزونه پکې لوستل کیږي.
خنثی متنونه هم ډیر دي ځینې داسې متنونه شته چې که یې نارینه ولولي او که ښځینه په اغیز کې یې توپیر نه راځي هماغه یو قسم اغیز کوي چې پدې ډول متنونو کې بیا د پروګرامونو جوړونکي اړ ندي چې ښځینه او نارینه ویندویان دواړه پیدا کړي.

دغږ تناسب:
په هرډول متن کې دغږ تناسب ته اړتیا شته، که تاسې نارینه متن لولئ که ښځینه، ماشومانه یاهم ټولیز نو باید دخپل غږ تناسب مو په پام کې وي.
دې ته مو باید پام وي چې ستاسې غږ باید له پروګرام سره مناسب وي، ځینې وختونه لکه په ځینو ډرامو کې تاسې کولای شی غږ نری یا غټ کړی خو کله چې سیاسی یا اقتصادي متن لولی څرنګه کولای شئ غږ بدل کړئ.
داسې هم مه انګیرئ چې تاسې دومره هنرمند یاستئ چې په یو پروګرام کې ددومره ستر کار تر ووده ووتلا ی شئ.
کیدا ی شي تاسې په څو بیلابیلو پروګرامونو کې د کارپوه په توګه نظر ورکړا ی شئ، نقد وکړئ مګر نشئ کولای په ټولو پروګرامونو کې یو ډول ویندویي وکړائ شئ.
او بالاخره دا چې خپل ځای او خپل غږ وساتئ داسې مه کوی چې کله اوریدونکی یا لیدونکی ووایي: فلانی ښه ویاند دی خو کاشکي چې ځان یې نه وای هرکاره کړی.
چې دلته هماغه ټکو ته دقت پکار دی چې باید ښځینه او نارینه متنونه بیل او په خپل ځای ولوستل شي، ماشومانه متنونه په خپل ځای، خپله لهجه، لحن، طرز او خپله چټکئ سره ولوستل شي او ټولیز هم په خپل.

ښه لیږد :

که څه هم پدې اړه پخوا بحث وشو چې تاسې باید په هغه کچه چې اړینه ده دلیکوال مطلب تراوریدونکي یا لوستونکي پورې ورسوئ ، خو دلته یو څو ټکي زیاتول غواړم.
په هرپروګرام یاهرهغه څه کې چې تاسې یې داوریدونکي یا لوستونکي په وړاندې ږدئ څو کسانو کار کړئ او زیار یې ایستلی دی ، څېړونکي ، لیکوال ، ایډیټر پروډیسر ، کمره مین او یاهم تخنیکرانو او نورو کسانو خو اوریدونکی یا لیدونکی یوائې تاسې پیژني هغه خبر ندی چې ددغه پروګرام ، طنز ، خبر ... دمتن لپاره چاڅېړنه کړې ده چا لیکلی دی چا ایډیټ کړی دی ؟ هغه یوائې پوهیږي چې داپروګرام فلاني وړاندې کړ فلانئ راډیو فلاني ټلویزیون وړاندې کړ ، خو تاسې باید په متن دومره تسلط ولرئ او دومره ښه پروګرام وړاندې کړئ چې اوریدونکی فکر وکړي چې تاسې خپله دمتن څېړونکی هم یاست لیکونکی او نور ټول تاسې خپله یاست.
کله چې څوک یو ښکلی ګل ګوري نو وایي چې به به عجب ښه ګل دی ؟ نه وایي چې عجبه ښه خاوره ده ؟ عجب ښه باغوان دی ؟ عجب ښه لمر دی ؟ عجبې ښې اوبه دي ؟ او ... تاسې هم هڅه وکړئ چې اوریدونکی یا کتونکی ووایي چې عجب ښه پروګرام دی او تاسې باید وځلیږئ.
بې شکه تاسې یاست چې د څېړونکي ، لیکوال ، ایډیټر او نورو ابرو ساتئ او داټول په ډیر تمرین او مطالعه سره شوني دي ، تاسې چې کله کوم پروګرام وړاندې کوئ وړاندې باید دهغه له لیکوال او پروډیوسر سره خبرې وکړئ دپروګرام په اړه کافي معلومات ترلاسه کړئ
.

تاسې چې کله یو خبر لولئ یا کومه سیاسی پیښه یاکوم بل پروګرام وړاندې کوئ اوریدونکی باید فکر وکړي چې ګواکې خپله تاسې تللي یاست هغه پېښه مو په خپلو سترګو لیدلې ده (تاسې باید خبر ورکړئ ، نه داچې یوائې خبر ولولئ ) .
کله چې یو خبر لولئ باید داسې یې ولولئ لکه چې تاسې په خپلو سترګو پېښه له نږدې لیدلې ده ، ځیرلې موده او غور مو پرې کړئ بیایې له اوریدونکو سره شریکوئ ، که کومه سیاسي پیښه یا تبصره لولئ باید داسې یې ولولئ لکه یو ښه کارپوه چې خبرې کوي.
همدارنګه خندني او تراټیجیډي متنونه ، تاسې که له طنز سره پوره بلد نه وئ ، یایې په اړه معلومات ونه لرئ یامو چېرته نه وي لوستي ښایي تاسې په هغې کې ناکام شئ.

که تاسې له طنز سره نه وئ آشنا ، د هغه له نازکو ټکو سره له خندنيو کلمو سره او پدې برخه کې مو تمرنين نه وي درلودلئ نو وبه نشئ کولای څرنګه چې بايده ده هغه ډول به تراوريدونکي پورې مطلب ورسوئ .

## څلورمه برخه :

### ويندويي په ټلويزيون کې:

تاسې به فکر کوئ چې په ټلويزيون کې ويندويي ستونزمنه ده ، خو نه داسې نه ده په تيره بيا اوس چې امکانات زيات شوي دي ، که څه هم چې د تصوير د ثبت ، د حرکاتو د کنټرول ، د ځيرې د حالت او د کمرو د ځای په ځای کيدلو او نورو لاملونو له کبله په ټلويزيون کې د پروګرام ترسره کول يو څه ګران دي خو داهم بايد له ياده ونه باسو چې د ټلويزيون کتونکي سربيره پردې چې غوږونه يې کار کوي سترګې يې هم کار کوي ، په همدې خاطر ستاسو د غږ تغير ، د کاغذ کړپ کړوپ او حتی ستاسې د ټوخي غږ کېدای شي د هغه پام جلب نکړي په داسې حال کې چې د راډيو د اوريدونکي ټول پام په غوږ کې تاسې ته متوجه وي.

په ټلويژني پروګرامونو کې د نور او تصويري لوبو ياهم د کامپيوتري ځلاوو ، د عکس او سلايډ او ليکنو د ښودلو له کبله ياهم د باران داوريدلو اود دود د پيداکولو په څير له نورو تدابيرو څخه په استفادې سره کېدای شي چې د ليدونکي پام ستاسو له غږ څخه بل خوا واوړي. خو په راډيو کې هرڅه په غږ پورې تړلي دي.

دا چې د تلويزيون ليدونکی تاسې نه ويني نو ډير وخت ستاسې د کلمو په صحيح تکرار يا هم د کاغذ او چوکئ په غږونو هغه د چاخبره سترګې پټوي او کله خوهم له سره د وياند د غږ بدوالي ته هم نه متوجه کيږي.

چې په خواشينئ سره به وواېو زموږ په ټلويزيونونو کې هم يو اځې همدې ټکي ته پام شوی او د ټلويزيون وياند نو جوړ شوی دی يو هنرمند او د هندي فلمونو هلک .

کله چې د ټلويزيون لپاره کوم وياند استخداميږي نو بايد سربيره پردې چې غږ ته يې پوره پوره پاملرنه اړينه ده بلکې د څيرې حالت ، د غړو حرکاتو او د سترګو د ليدلو قسم ته يې هم بايد ډيره پاملرنه وشي.

د راډيو د وياند د پروجکټورونو له روښانيئ سره سروکار نشته او تل اړهم ندی چې سر له ليکنې پورته کړي او کمرې ته وګوري او ياهم ځينې جملې له يادو ذده کړي.

همدارنګه د راډیو ویاند یوه دا آسانتیا هم لري چې د جامو خرابوالی یې د کار خنډ نه کیږي او زړه به یې له جامو سره نه وي کښاله چې له ځان سره وو ایي اخ جامې مې غیرمنظمې نه وي ویښتان مې جوړ وي او د کمرې په انتخاب کې سهوه نسم یا هم د ځینو خبرونه لیدونه او یانورې جملې اشتباه یاد ته ونه سپارم.
ځکه نو ویلی شو چې د راډیوویاند یوازې غږ او بس ، هغه اړ دی یوازې خپل غږ وروزي او د خپل غږ د ښه والي لپاره هڅه وکړي ، او خپل ټول ذده په خپل غږ کې وکاروي ځکه چې د اوریدونکي له ځیر غوږونو څخه د تیښتې هیڅ بله لاره نلري.
د راډیو د ویاند یو ځنډ اوریدونکی دومره غوسه کوي چې راډیو بندوي ، یو وړوکی ټوخی یې په اوریدونکي داسې بده اغیزه کوي لکه یو بم د کاغذ غږ یې لکه اره د اوریدونکي په اعصابو کې ګرځي.
خو په ټلویزیون کې ډیرخه توپیر لري چې د هغه لپاره په لاندې بحثونو کې د روښانولو هڅه کوو:

## لمړی: د پروګرامونو ډلبندي

دلته هم هماغه د متن بحث ډیر مطرح دی ، څرنګه چې متنونه په ښځینه ، نارینه ، ماشومانه او ټولیز ویشلای شو همدغه ډول پروګرامونه هم ویشلی شو.
مثلاً که تاسې له تلویزیون څخه یا هم له راډیو څخه د پهلوانئ دلوبو یو رپوټ اورئ او یوه نازکه جینئ یې وړاندې کوي ، کله چې صحنه هیجاني کیږي او پهلوان خپل ټول زور کوي هغه جینئ به څرنګه وکولای شي په خپل نازک غږ داسې درنې خبرې وکړي که یې کوي هم ستاسې به پرې خندا رانه شي ؟
یا هم ناځا په د ټلویزیون په پرده یو بریتو سړی ښکاره شي او وو ایي چې غواړي ښځو ته اوبدل ور ذده کړي ، او یوه ښه لویه او سپنیزه میله یې هم په لاس کې وي پرې وبه نه خاندئ ؟
یا هم د خبرونو په مهال یو اووه اته کلن ماشوم راشي د لویانو په پروګرام کې د کمرې مخ ته کیني او سیاسی او اقتصادي خبرونه ولولي که څه هم دویندویې ټول اصلونه مراعات کړي ، په ښه لهجه ، مناسب لحن او د جملو مکثونه او هرڅه په ښه توګه مراعات کړي خو بیا هم تاسې به یې په خبرونو باور وکړئ که څه هم ټول دقیق وي ؟

خو نه تاسې د پهلوانئ له لوبو څخه د راپور لپاره مناسبې څيرې او مناسب غږ ته اړتيا لرئ ، د پخلي او اوبدلو د پروګرام لپاره هم مناسبو څيرو او غږونو ته اړتيا لرئ ، د خبرونو او نورو پروګرامونو لپاره هم همدا اسې.
کله چې ليدونکی له تاسې څخه راپور اوري بايد ستاسې د متن ليکوال يې له ياده ووځي اوريدونکی او ليدونکی بايد تصور وکړي چې هغه څه چې تاسې يې وايا ست ستاسې د خپلي څيړنې او فکر حاصل دی.
پس پام مو وي چې هرڅه هم مسولينو او پروډيوسرانو ته مه سپارئ ، او دې ټکو ته بايد پروډيوسران هم په جدي توګه پام وکړي.

## دوهم : د څيرې تناسب

تاسې بايد هڅه وکړئ د يو پښتون او يو افغان په توګه هغو کسانو ته چې ستاسې پروګرام ګوري او اوري وښايا ست چې تاسې له پښتنو سيمو او افغانستانه خبرې کوئ او افغانان ياست ، پام مو وي هغه کسان چې ستاسې پروګرام ګوري هغه ټول له امريکا څخه ندي راغلي او نه يې هم له هغو او د هغوی له جامو سره دومره مينه لري لکه تاسې يې چې لرئ.
کله چې ستاسې پروګرام پښتانه او افغانان ګوري تاسې بايد لکه يو افغان او پښتون وئ ترڅو هغوی مو خپل وبولي او د پردي په سترګه درته ونه ګوري ، دا د هغوی په واک کې دي چې بل ټلويژن ونيسي او خبرونه يې واوري ، ښايي ستاسې له دې پردي توبه يې ښه رانه شي
.
او که چيرې تاسې ديو کلتوري يا دوديز پروګرام په اړه خبرې کوئ او جامې مو افغاني او پښتني نه وي هسې مثال به ولري لکه د هغه چا نصيحت چې خپله پرې عمل نه کوي او دا جو ته شوې ده چې هغه بيا اغيز هم نه لري.
خو په هرحال تاسې بايد خپل موډ په ښه توګه سم کړئ مثلاً : مخ ، سن ، رنګ ، د ويښتانو ډول ، مزي توب (چاقي ) ډنګروالی او نور ...

## دريم:
## جامه مو بايد له پروګرام سره سمه وي:

ويلای شو چې هر پروګرام ځانګړې جامې غواړي. يا په بل عبارت هرويانند بايد له خپل اړوند پروګرام سره سمې جامې واغوندي.
مثلاً: د خبرونو ويانـد رسمي جامه، دکلتـوري پروګرام چلوونکی ملي او ځايي جامه، د سپورټ چلوونکی آزاده او سپورټي جامه او نور ... ولري.
که د ډاکټرئ د پروګرام چلوونکی چې خلکو د ځينو ناروغيو درملونه په ګوته کوي له خپل واسکټ او ګوشئ سره ښکاره شي نو ښه به نه وي؟.
حتی که شوني وي چې بک ګرونډ صحنې هم مناسبې وي مثلاً که يو ډاکټر په يو روغتون يا درملتون کې خپل پروګرام جوړ کړي او هلته خپلو ليدونکو ته درملونه وښايي او د سپورټ د پروګرام چلوونکی له يولوبغالي څخه ځومره به ښه وي او ليدونکی به يې ترپخوا زيات پروګرام وګوري او وبه يې مني.

## څلورم:

## د پروګرام له وخت سره سمې جامې:

ډيرکله ما په خپلو تلويزيونونو کې ليدلي دي چې حتی په اوړي کې يې دژمي جامې اچولې دي په داسې حال کې چې پروګرام هم په اوړي کې ثبت شوی دی او په اوړي کې دا دي خپريږي او ياهم په ژمي کې د اوړي جامې اچوي.
پام مو وي چې ستاسې د پروګرام ليدونکي هغه مهال ستاسې پروګرام ګوري چې له تلويزيون څخه خپريږي او پروګرام هغه مهال له تلويزيون څخه خپريږي چې پروډيوسر او مسولين يې وخت مناسب وبولي.
که يو پروګرام په زمري (اسد) مياشت کې ثبت شوی دی او خپريږي د جديې په مياشت کې نو ليدنکی به څه احساس ولري ستاسې هغه جامې چې ګوري او د کور نه بهر واوري اويخ ګوري، دا همداسې مثال لري لکه د تيرې اونئ ورځپاڼه هغه څوک نن نه لولي که هرڅومره يې مطالب نه زړېدونکي وي ستاسې د پروګرام منځ پانګه به هم داسې وي چې نه به وي زړه شوې خو بيا هم اوريدونکی يې نه ګوري غواړي تازه تازه شيزونه وګوري.
دغه مسلې ته پام اړين دی چې په ليدونکو اغيز کوي او له تلويزيون څخه د نن ورځې د خيرې او نن ورځې د خبرونو په خپربدلو کې هم مرسته کوي.

## ستاسې د څيرې سمون:

ځيني وخت اړينه وي چې ستاسې په څيره کې خندا او موسکا وليدل شي ، خو ځينې وخت بيا موسکا بيخي هغه دچاخبره عيب وي ، مثلاً تاسې ديوملي شخصيت د مړينې خبر لولئ او دټلويزيون ټول کتونکي دومره اغيزمن شوي وي چې سترګې يې نمجنې شوې وي او تاسې دخبر په پای کې موسک شئ ياهم خبر په شوخه لهجه ولولئ نه يوازې به درنه ليدونکی خپه شي بلکه يوډول سپکاوئ ګڼل کيږي.

همداراز که يو دخوښئ او خندا خبر ياپروګرام وي تاسې تندی هغه دچاخبره ګونځې وي ترپايه مو څيره موسکا ونه ليدل شي اوريدونکی داسې احساس کوي لکه هيڅ چې يې نه وي ليدلي سربيره پدې دهغه زړه دهم مات کړ ، دهغه چازحمتونه چې ددغه پروګرام لپاره يې ايستلي وو هم په اوبو لاهو شول ، ځکه دا پروګرام يوتفريحي پروګرام وو او تاسې يوازې په کتلو او دخپلې څيرې په ډول سره دهغه ټول شور له منځه يووړ.

نو دهرپروګرام لپاره ځانګړې څيره ولرئ ياپه بل عبارت په خوښئ خوښ شئ په غم کې غمجن.

دتوجه جلبول:

تاسې پرته لدې چې دکمرې په مخ کې مطلب يا متن لولئ تاسې دتلويزيون له لارې ډيرو خلکو په کورونو کې هم ياست ، دهغوی په کورونو کې له هغوی سره خبرې کوئ ، داسې مه کوئ چې خلک ستاسې له څيرې څخه ستړي شي ، يايوډول کينئ او يوازې خوله وخوځوئ چې اوريدونکی آخر په خپل ځای کې تنګ شي زړه يې غواړي چې تاسې لږ وخوځيږئ.

ددې لپاره چې اوريدونکي مو پرينږدي او ترپايه درسره پاتې شي هسې حرکات ولرئ چې هغوی درته ځير شي تاسې يې له ياده ونه وځئ.

خوهسې هم مه کوئ چې هغه مو دمتن منځ پانګه له ياده وباسي او يوازې ستاسې د اداګانو سيل وکړي.

## پنځمه برخه:

### وروستئ سپارښتنې:

کله مو چې پورته سپارښتنې ټولې عملي کړې او نور نو چمتو یاست چې کار پیل کړئ نو ددې لپاره چې نور په کار پیل وکړئ دا څو سپارښتنې د وروستي یادښت په توګه په یاد وساتئ.

### اول: په متن یا هغه څه چې وایاست باید تسلط ولرئ:

پدې اړه پخوا هم خبرې شوې دي خو دلته یو څه توپیر لري.
که تاسې یواځې دیو مطلب ویاند یاست یعني اړیاست متن ولولئ، ستاسې ټوله دنده دهغه سم لوستل دي. خو که دکوم پروګرام چلوونکی یاست چې په هغه کې دمیلمه دشتون اړتیا وي، نوښه داده چې لږترلږه سلام او د پروګرام پیل او دپروګرام معرفي او دپرورګرام خدای پاماني درسره ولیکئ او یادې کړئ.
په متن یا هغه څه چې لولئ او وایاست ستاسې تسلط سل په سل کې اړین دی. په هغه څه سربیره چې وړاندې مو وویل او تاسې هم لږ تمرین وکړ اوس وړاندې تردې چې د میکروفون ترشا کینئ په متن د تسلط لپاره لاندې ټکي هم په نظر کې ونیسئ:

### الف: د لوستلو او لیکلي شوو څیزونو ترمنځ د توپیر تشخیص

لیکوال هغه متن چې تاسې ته درکوي ښایي داسې جملې او کلمې پې پکې ځای کړې وي چې یواځې لیکل کیږي او لوستل کیږي نه. مثلاً لیکوال لیکي: کومو مسلو ته چې پورته اشاره وشوه، یا هغه څه چې پورته ولیکل شول،.

داډول جملې ليکوال د لوستونکي لپاره کاروي نه وياندد اوريدونکي لپاره.
ځينې وخت ليکوال په يو متن کې د يو څيز د توضيح او تشريح لپاره ځينې ضروري يادونې په قوس کې نيسي مثلاً:
افغانانو نننئ له ويارړه ډکه ورځ (دخپلواکئ ورځ) په داسې شرايطو کې ونمانځله چې دهيواد په ګوټ ګوټ کې ترهه ګرا قدمات دوام لري..
چې دلته ليکوال يو اځې يادونه کوي خو تاسې اړياست چې متن وړاندې لدې چې ستوډيو ته يوسئ بايد پوره پوره مو داڅيزونه سره سم کړي وي.

ب: نښې اينښودنې
دا په ياد ولرئ چې که غواړئ په متن ښه برلاسي وئ او زيات تسلط پرې ولرئ نو په متن کې نښې وليکئ.
مثلاً د نقطو په اينښودلو ، ويرګل او سواليې په څيرنښې کولای شي چې ستاسې په کار کې هم آساني راولي او هم تاسې وکولای شئ څرنګه چې وړاندې مو پرې غور کړئ په معنی مو يې ځان پوه کړئ هغسې پرې اوريدونکی هم پوه کړائ شئ.
کابو ټول باتجربه ويندويان ځان ته ځانګړې نښې ليکي ترڅو د متن د لوستلو په مهال يې په ياد وي چې مثلاً جمله څرنګه پيل کړي او يا يې څرنګه پای ته ورسوي او يا هم چېرته په کومو جملو ټينګار وکړي.
هغه نښې چې په متن کې يې ږدئ سرک ته ورته دي. تاسې که هرڅو په خپلو سالمو سترګو لاره وينئ خو بياهم نښو نښانو ته اړتيا لرئ. ستاسې يوه وړه اشتباه د ټول پروګرام د ثبتيدا خنډ کيږي او څه شيبه به ځنډ کوئ بيا به شروع کوئ چې هله مو د غږ آهنګ هم تغير کوي شايد هم چې لحن يا لهجه مو هم فرق وکړي ، چې داکار بيا په تلويزيون کې يو څه زياتې ستونزې زيږولای شي.
حتماً په متن کې نښې ځان ته کيږدئ او پدې برخه کې له ليکوال او پروډيوسر څخه هم مرسته وغواړئ.

ج: نورې خبرتياوې

داهم ډېره ښه خبره ده چې په هغه څه په خبرېدا سربېره چې په متن کې راغلي دي په نورو برخو کې هم خبر شئ ، دغه کار به له تاسې سره مرسته وکړي چې ترڅو هرڅومره ژر کولائ شئ په متن کې مسلط شئ.
ددغه خبرتیاوو ترلاسه کول بیا په هغه پروګرامونو کې ډېر اړین دی چې هلته بشپړ متن نشته او لکه مرکې ډېرې اړینې دي.
پدې برخه کې هغه لیکوال یا هغه څوک چې ورسره مرکه کیږي ښه معلومات درکولائ شي.

## روغتیا او آرامښت:

کله چې تاکل شوې وي پروګرام ثبت کړئ تاسې باید داسې پلانونه وکړئ چې په ښه روغتیا او آرامښت سره ستوډیو ته لاړ شئ.
په ډاډ سره ویلی شو چې ستاسې ستړیا او غوسه په پروګرام اغیز کوي ، د ستړي ویاند غږ یا د هغه ویاند غږ چې زکام وي خپل اصلي حالت له لاسه ورکړی وي او د اوریدنکي دخوښې وړ غږ ندی ،مګر دا چې تاسې وغواړئ د یوزکام ویاند رول ولوبوئ !
ځکه نو په تیره هغه ویندویان چې هره ورځ پروګرام لري باید ښه صحت ولري او په بشپړه توګه آرام او هغه دچاخبره عادي وي.
یوه تجربه هم داده چې له ویندویې وړاندې د یو یادوه ګیلاسونو نیمه ګرمو اوبو څښل هم ګټه لري.

## دریم: مړښت او وږی توب:

تاسې باید یوه شئ چې په څرنګه معده ښه کار کولی شئ ؟ زه فکر کوم چې په ډېره ډکه معده یا ډېره تشه ګېډه هم نشئ کولای په ښه توګه پروګرام وړاندې کړئ.
خپل ځان وازمویئ په دې اړه هم یوه بله تجربه داده چې وړاندې له دې چې د پروګرام ثبت ته لاړ شئ په اوبو کې لږ دلیمو اوبه وڅښئ ترڅو چې حلق مو وچ نشي.

## څلورم: مناسبې جامې:

د مناسبو جامو منظور هغه جامې دي چې تاسې پکې آرامه وئ ، تاسې څرنګه کولائ شئ چې له نرمې موسیقئ سره په ډېره آرامئ د رحمان بابا یو غزل ولولئ په داسې حال کې چې

په بوټونو کې مو پښې له ميخ څخه ځوريږي او تاسې هم ورته نور طاقت نشئ راوړلای او ځان سره کشوئ ؟ !

## پنځم: مناسب وخت

ځيني ويندويان باوري دي او دايې تجربه کړې ده چې له ماسپښين وروسته ويندويي د سهار له ويندويۍ څخه ډيره ښه ده ياداچې هغه مهال غږ ډير ښه آهنګ لري.
يا په بل عبارت هرڅومره چې د ويندويۍ کار له سهاره ليرې کيږي دومره ښه کار کولائ شو . ځيني هم وايي چې نه هسې نده خو بيا هم تاسې ځانونه وازمويئ.

## شپږم: بايد پاک او مرتب وو

ښايي تاسې فکر وکړئ چې نو په راډيو کې به دا پاکيزګي څه په درد وخوري ځکه چې هلته مو څوک نه ويني يوا ځې ته يې او تخنيکر نو که پاکې جامې ونه لرو څه پروا لري.
فرض کړئ مازيګر له اداري ووتلاست غواړئ چکر ووهئ که پاک وئ نو له دغه چکر څخه به ډير خوند وانه خلئ ؟
کله چې ستاسې ماشوم يا ميرمن پاکه او ښکلې درسته ناسته وي خوښ به نه وئ ؟
له دې به تير شو موټر خو به ډير ځغلوئ ، که په يو ککړ او هغه دڅاخبره غورازه موټر کې ناست وئ ډير به ښه احساس ولرئ که په پاک او ښکلي موټر کې ؟
که نور باور نه کوئ ورشئ له يو مستري او يوبل کارګر نه پوښتنه وکړئ چې کله يې جامې پاکې وي ښه په خوند کار نه کوي ؟
دا خو پريږده چې په تلويزيون کې پاکيزګي شرط ده ، بلکې په راډيو کې هم کله چې يو ويان‌د پاک وي ، ښه احساس لري په ښه احساس کار کوي او ښه خپله دنده اجرا کولئ شي تاسې به کله هغه رستورانت ته تللي ياست چې ډير ښه روښانه وي ښه هوا ولري او ښه پاک وي هلته که ډيرې پيسې هم ورکړئ او خوراک يې هم څومره ډير صفتي نه وي خو بيا به هم ښه احساس ولرئ همدا سې ويندويي هم ده .
يو وخت کې مې د يو دوست په کور کې يو افغان ټلويزيون کتلو ، دهيواد يو اديب چې په ښه معتبره راديو کې هم کار کوي ميلمه وو ، دهغه جامې که څه هم پاکې وې خو سمې يې نه وې اچولې او هغه څه چې يې لاندې اغوستي وو په غاړه کې بهر ښکاريدل ، که هرڅو به يې ښې

خبرې کولې خو زموږ يې له جامو سترګې نه اوښتلې او موږ ته يې زور راکاوه چې ولې يې جامې داسې وي.
که خپله يې هم فکر شي خپه به وي ، که دراډيو وياند هم وي جامې يې سمې نه وي يو قسم يې زړه هغه د چاخبره کښاله کيږي.
تاسې تراوسه په کوم ټلويزيون کې داسې وياند ليدلی دی چې د ډيرو سګرټو د څکلو يا ... له کبله يې غاښونه ژيړ وي ؟ خو نه به مو وي ليدلی پس تاسې هم نه غواړئ داسې وئ .
او دا له ياده مه باسئ چې تاسې د موډ او سمبل په توګه په ټولنه کې ارزښت لرئ موډ هم تاسې خپروئ او خلک له تاسې نه ذده کوي ، پس مثبت اوسيږئ.

## اووم: دکار ځای هوا :

بې له شکه د ستوډيو يا دکار د ځای هوا هم ډير اغيز لري. ډيرئ ويندويان په ستوډيو ګانو کې په تيره کله چې پرې د ستوډيو د پروجکټورونو وړانګې هم لګيږي خولې کيږي په تيره بيا هم په اوړي کې چې بيا په هغه کچه چې لازمه ده ښه ويندويي نشي کولائ.
همدارنګه ډير کله ساړه وي وياند اړ دی چې بخارئ ولري ، هلته که د هغه زنه لړزيږي نو بيا به يې ويندويي څه مزه ولري.
داټکی هم پروډيوسرانو ته دااهميت وړ دی او هم خپله وياند ته.

## اتم: آرامه ځای

که په چوکئ او د ميزتر شا ويندويې ته کينئ نو پام مو وي چې په ښه توګه په متن تسلط ولرئ.
زما په ياد دي ډير داسې وختونه راغلي دي چې د ويندويئ په وخت به مې د چوکئ بدلولو ته اړتيا پيدا شوه ، ځکه په هغه چوکئ به نو شوم کيناستلای.
يابه هم ځينو چوکيو غچ غچ کاوه چې دغې مسلې به ډير راته کار ګران کړ ، خو په هرحال تاسې بايد ډير پام وکړئ وړاندې تر دې چې ويندي پيل کړئ بايد هرڅه مو سم کړي وي.

## نهم: په متن کې موسيقيو کې ته پام

هر کله چې يو پروګرام د اوريدلو لپاره چمتو کيږي نو موسيقۍ ورسره ميکس کيږي يا پرې زياتيږي چې کـه تاسـې وړانـدې لـه هغـې موسيقۍ واورئ دابـه ډيـره ښـه خبـره وي ځکـه چـې ښايي تاسې له هماغې موسيقۍ سره سم وکولائ شئ خپل غږ ته ډير اغيز ورکړئ.
ځينې وخت ويندويان پـه مـتن کـې هغـه موسيقي چـې لـه مـتن سـره خپريـږي خپلـه هـم کـراره کراره اوري ترڅو خپل غږ ته زيات پام وکړي او هغه ته احساس ورکړي.

لسم: د غږ بيا اوريدل
که هرڅومره تخنيکر په خپل کار کې پياوړى هم وي بيا هم د غږ په ليول کې ورسره ملګرتيا وکړئ. وړاندې له هغه چې غږ نور د خپراوي لپاره لاړشي نو يوځل يې بيا خپله هم واورئ.
خو ترټولو د ابنه خبره ده چې وړانـدې لـدې چـې ثبت پيـل شـي نـو يـوه ټوټـه غـږ ثبت کـړئ او يوځل يې واورئ.
په تلويزيون کې هم د اصلي ثبت له پيل وړاندې خپل غږ او تصوير وګورئ.

## شپږمه برخه:

### کله مو چې ثبت پيل کړ

کله چې ثبت پیل شو یعنې ستاسې کار وروستي پړاوونه کچ کول نو له هرڅه زیات باید په ځان مسلط وئ.
د ثبت په مهال باید تاسې له ټولو طبیعي او هغو امکاناتو چې په لاس کې یې لرئ ښه استفاده وکړئ او له ټولو هغو استفاده وکړئ ترڅو ښه وځلیږئ.
ویاند که هرڅومره په خپل کار کې استاد وي بیا هم کله چې د پروګرام د پیل علامه ورکول کیږي لږ څه هیجاني کیږي ، خو بیا دغه هیجان ډیر ژر ختمیږي.
تاسې کله چې د میکروفون ترشا کینئ باید ټول بهر څیزونه هیر کړئ ، باید ټول فکر مو خپل متن او خپل پروګرام ته وي.
داسې احساس ولرئ چې بس نور نو په ژوندئ توګه دادي له اوریدونکو سره یم او هغوی هم هغه د چاخبره دزړه په غوږو راته څیر دي.
کله چې تاسې په خپل ځان پوره مسلط وئ نو بیا کولائ شئ ټول هغه حقونه چې په متن یا وینا کې یې باید ادا کړئ ښه ادا کولائ شئ.
لاندې څیزونه هم درسره ډیره مرسته کوي او اړین دي.

## اول: ډاډ

کله چې مو ښه تمرین کړئ وي په خپل متن هم ښه لاسبري یاست بیانو د دې ځای نه پاتې کیږي چې تاسې په ځان ډاډ ونه لرئ.
په ښه ډاډ سره ستوډیو ته ننوزئ دا هم په یاد ولرئ چې ټوله ستوډیو او امکانات ددې لپاره چمتو شوي دي ترڅو تاسې پکې خپله ښه اجرا ترسره کړئ.
له اوله ډاډ ولرئ چې څومره کیدلئ شي په هغه توګه مطلب ښه ولولئ ، په ټول ډاډ سره ننوزئ او په پوره ډاډ سره خپل مطلب ثبت کړئ.

## دوهم: تمرکز ، او پوره پام

دا وروستي پړاوونه دلته نور څه ندي پاتې یواځې دا پاتې دي چې تاسې خپل مطلب په ترټولو ښه توګه ثبت کړئ ، ستاسې وینا ښکلې وي او په ښه توګه د لیکوال منظور تر اوریدونکي پورې ورسوئ پس همد ې ټکي ته مو باید پام وي.
دلته باید داسې فکر وکړئ چې هرڅه له ستوډیو بهر پاتې شوي دي یواځې تاسې یاست او هغه مطلب چې ثبتول غواړي.

تاسي ټول ځيزونه بايد له ياده وباسئ ترڅو ښه وکولائ شئ خپل مطلب ته ځير شئ او ټول تمرکز مو خپل متن ته وي.
يوه ساده لاره هم پدې اړه داده چې سترګې پټې کړئ او څو ژورې ژورې ساګانې وباسئ.

## دريم: مطلب ته اهميت ورکړئ

هرپروګرام چې جوړيږي ديوې اړتيا لپاره جوړيږي ، او هرپروګرام خپل ځانګړي مينه وال لري تاسې چې ستوډيو ته لاړ شئ ، پدې ستاسې کار نشته چې دا پروګرام د چالپاره دی ؟ د پوهانو ، ماشومانو ، اديبانو او نورو تاسې يواځې د متن د لوستلو مسوليت په غاړه لرئ پس پروګرام مو ډير مهم دی او ډير اهميت ورته ورکړئ.
همدا تاسې ياست چې کولای شئ دهغه پروګرام اهميت زيات کړی نو هلته به بريالی وياند ياست چې په ښه توګه خپله دنده اجرا کړئ.
دا مو بايد په ياد وي چې هر پروګرام ځانګړي مينه وال لري ، که سپورتي پروګرام اجرا کوئ که روغتيايي يا هرډول پروګرام تاسې اړياست په ښه توګه يې اجرا کړئ.

## څلورم: له اوريدونکي سره خبرې وکړئ

تجربو ښوولې ده چې د ويندويۍ په مهال بايد هسې خبرې وکړئ لکه له اوريدونکي سره چې مجلس کوئ.
تاسې دهمدې اوريدونکو لپاره مطلب لولئ او يا زيار ګالئ نو پدې سربيره چې اوريدونکی بايد هغه څه چې تاسې واياست په يو ځل اوريدلو درک کړي بايد خپل اوريدونکی په خپل ذهن کې انځور کړئ چې تاسې دغه اوريدونکي ته خبرې کوئ ، هله به وپوهيږئ چې په څومره ښه توګه هماغه اوريدونکي ته چې ستاسې په ذهن کې ناست دی او راډيو ته په کلکه غوږ نيولی دی ښه پوه کړئ.
زموږ په راډيو ګانو او ټلويزيونونو کې ويندويان هسې خپل مطلب لولي ته به وايي چې د کومې محکمې امر لولي.
په ټلويزيون کې هم داسې سر ښکته اچوي او خپل کاغذ ته ځير وي ، هيڅ دافکر هم ورسره نه وي چې اوس به اوريدونکي زما پروګرام اوري.
ځينې خو هم يواځې د مسولينو له ويرې يواځې د کلمو سمې بڼې لولي نور په دې کيسه کې هم ندي چې اوريدونکی به اوس څه احساس لري.؟

په تیره خو په ټلویژني مرکو کې ، وياند هغه کاغذ ته ځير وي چې بل چا ورته لیکلی دی او کله کله خو هم تکراراً د ښاغلی فلاني او ... کلمې چې په کاغذ لیکل شوې د پوښتنو ترپایه لولي.
خو یوځل بیا ټینګار کوو چې تاسې باید په خپل ذهن کې يو اوريدونکی انځور کړئ هغه ته خبرې وکړئ ، دلته به درته پته ولګي چې تمرين څومره اړين دی.

## پنځم: له مخاطب سره صمیمي اوسئ

ستاسې پروګرام که دهرچا لپاره دی ، د ماشومانو لپآره ، د لويانو لپآره یاهم د پوهانو لپاره باید اوريدونکی مو په ذهن کې ناست وي او تاسې ورسره په پوره پوره صمیمیت خبرې وکړئ.
وايي د راډيو يو وتلي وياند به ورسره خپل يو ملګری ستوډيو ته بيولو ترڅو هر وخت چې د هغه له څيرې څخه د صميميت او موسکا ليرې کيږي هغه يې پرې غوږونه راکاږي او بيرته يې خپل صميميت او موسکا یاد ته ورشي.
همدا سې په ټلويژن کې تاسې باید په پوره صميميت له اوريدونکي یا ليدونکي سره خبرې وکړئ.
باید اوريدونکی يا ليدونکی داسې وانګيري چې تاسې سربيره پر دې چې يو ښه وتلی څوک یاست بلکه په پوره زړه سوي او صميميت سره ورسره خبرې کوئ.
تاسې خو څه له اوریدونکي سره خپه نه یاست چې ورته په ترينګلې لهجه خبرې وکړئ ، یاهم هغه وويروئ.
اوداهم له یاده مه باسئ چې کله تاسې د مايکروفون یا کمرې مخ ته کیناستلاست نو باید پّه اوريدونکي یا ليدونکي خپل ويارِ هغه دچاخبره وپلورئ.
ډیرکله اوريدونکي یا ليدونکي وايي: ياره فلانئ وياند څومره ځان ته په غوره کې دی .

## شپږم: د شاوخوا حرکاتو ته نه پاملرنه

دويندويۍ په مهال ښايي په هغه متن ، نښانو او سپارښتنو سربيره نور حرکتونه او پيښې هم ستاسې نظر جلب کړي ، چې دا چاره د راډيو په نسبت په تلويزيون کې ډيره شوني ده .
ځکه چې د تلويزيون په ستوډيو کې د ستوډيو له څراغ او تخنيکر پرته نور کسان هم شته ، لکه دصحنې مدير ، ليکوال ، پروډيوسر يا کتونکی.

د کمرې چلوونکي هم له خپلو مسولینو څخه په ګوښه کې معلومات اخلي چې کمره څرنګه کړي نو دغوی ځراغونه هم کله مړه او بل شي چې دا پیښې باید ستاسې په تمرکز اغیز نه وکړي ، تاسې ددې په څنګ چې د کمرو حرکت څارئ او نورې اشارې هم اخلئ باید اجازه ورنکړئ چې دا څیزونه مو په پام بل خوا کړي.
په راډیو کې هم همداسې ، تاسې چې کله خبرې کوئ او د ستوډیو له ځراغ پرته نورې باریکئ هم شته چې ستاسې پام باید ورته وي ، خو دا څیزونه باید ستاسې په کار کې هیڅ اغیز هم ونه کړي.
یا لنډ به ووایو چې هیڅ حرکت باید د کار په مهال ستاسې پام بل خوا کړي.
چې دا چارې زیاتره د تخنیک له کوټې څخه چې د دوه ښیښو په وسیله له ستوډیو څخه هم بیل دی ترسره کیږي ، زیاتره وخت هلته له تخنیکرانو سره خلک ناستې ولاړې کوي چې ښایي تاسې ته لاس هم وخوځوي ، او که درسره شوخي لري نو هلته خو نو بیا څه کو ي .
او لکه له ستوډیو بهر که پروګرام وړاندې کوئ یا د کوم پروګرام ویندویې کوئ نو هلته بیا دا حرکتونه زیات لیدل کیږي ، چې که تاسې په ځان بشپړ باور ولرئ نو دا څیزونه بیا ستاسې په کار اغیز نه شي کولای.
خو تاسې باید یوا ځې په هغه څه چې درکړل شوي دي لکه متن ، د ځراغ بلیدل او مړه کیدل او یا نور د پروګرام د پیل او پای نښانې په نظر کې ولرئ نه بل څیز.

## اووم: حرکتونه

تاسې کې د تلویزیون د کمرې په وړاندې متن لولئ ددې ترڅنګ چې د یو مړي غوندې باید متن ونه لولئ بلکه دا هم نشئ کولای چې د خپل حالت ته بدلون هم ورکړئ.
خو زما وړاندیز دادی چې په راډیو کې هم باید له پیله ترپایه خپله یوډول ښه وساتئ ځکه دا چاره ستاسې په غږ کې سل په سل کې اغیز کوي.
کله چې تاسې غوسه وئ نو ټول اوریدونکي په آسانۍ سره کولای شي ستاسې په غږ کې په غوسه پوه شي.
اویا کله چې تاسې طنز لولئ کولای شئ لاسونه وخوځوئ او یا هم ولې پورته واچوئ چې دلته تاسې لکه یو هنرمند هسې کار ته اړتیا لرئ.

یوبل ثیز چې دلته یې یادول مهم دي هغه دادي چې تاسې باید د لانګ شاټ ، یا میډیم شاټ تصویرونو په مهال چې کله مو پښې هم ښکاري باید ډیرپام مو وي چې له پښو سره زیات احتیاط وکړئ چې درنه پرانستې پاتې نشي.

## اوومه برخه:

که څه هم مرکه پخپله یوډول راپور او راپور هم غالبا له مرکې سره مل وي ، خو له دې دواړو څخه هر یو په راډیو او ټلویزیون کې ځانګړی ځای او مفهوم لري چې مونږ هم همدغه اصل ته په پام سره مخ په وړاندې ګامونه اچتوو .

که ځینې ملګري وایي چې آسانه کار په راډیو او ټلویزیون کې مرکه ده خو په لږ پام سره به دې پایلې ته ورسیږی چې هغه هیلو او تمو ته په پام سره چې له یوې مرکې څخه کیږي نو بیا به هم ځیر شي چې دډله ایزو رسنیو یو ترټولو مهم کار هم مرکه ده .

یوه دقیقه مرکه کولای شي حیرانوونکې پایلې په لاس درکړي او واقعي پوښتونکی یا مرکه کوونکی باید د ډیر معلومات ولري .

په پرمختللو هیوادونو کې د هرې برخې لپاره ځانګړي خبریالان روزي لکه : جنګي خبریالان ، هنري ، اقتصادي ، سپورټي او نور ځکه نو هرخبریال هرکاره نه جوړیږي او پخپله ځانګه کې کافي معلومات ترلاسه کوي .

ځینې هغه استادان وایي چې د تحقیق یوه ترټولو ښه لاره مرکه ده . مرکه د اطلاعاتو د ترلاسه کولو لپاره ډیره ښه او ساده لاره ده .

ځینې داسې کارپوهان شته چې ځینې مطالب نشي کولای ولیکي خو په آسانۍ سره کولای شي په مرکې کې یې ووایي او همدارنګه دلیکلو په وخت پام هم زیات کوي .

ځکه نو څوک چې د راډیوټلویزیون یا هم نورو مطبوعاتي دفترونو لخوا د مرکې لپاره استول کیږي د هغوی دنده د متن له لوستونکي څخه سخته ده .

مرکه کوونکی اړ دی چې هسې اخلاقي او علمي وړتیاوې ولري چې هغه چا سره چې مرکه کوي داسې صمیمي او د اعماد رابطه ټینګه کړي چې هغه شوق ، هیجان او د مسولیت احساس وپاروي .

مرکه په حقیقت کې یو شفاهي او دقیق پوښتنلیک دی چې هیڅ د شک ټکی نه پریږدي او د اطلاعاتو د ترلاسه کولو لپاره ډیره کاریدونکې لاره ده .

مرکه په دوه بڼو ترسره کیږي :

اول : له وړاندې ټاکل شوې وي

دا ډول مرکه معمولاً د موضوع په همغږۍ او له پخوانۍ ژمنې سره سم ترسره کیږي .

دوهم : ناڅاپي

ناڅاپي مرکې چې کله ورته ګزارش هم ویلی شي څوک چې ځواب ورکوي د حاضرینو له منځ څخه غوره کیږي له مکاني نظره هم داډول مرکه په دوه برخو ویشلی شو .

الف: په دننه ځایونو کې (پلاتو )

ب: په بهر ځایونو کې (لوکیشن )

هره مرکه یا ګزارش که د وخت او هغه لګښت له مخې چې پرې راځي ګټوره نه وي نو بې ګټې ده .

د هرپروګرام د پوښتونکي ژبه د زرګونو بلکې د میلیونونو خلکو ژبه ده . ځکه نو کومې پوښتنې چې مطرح کیږي باید په ډاګه او روښانه وی او هڅه وکړي چې مناسب ځواب ترلاسه کړي .

ښکاره خبره ده چې هره مرکه باید یوځه اوریدونکي ته وروښیي او یا لږ ترلږه د مطرح شوي پوښتنې ځواب ترلاسه کړي . مرکه کوونکی که له چارواکي سره خبرې کوي نو ښه خبره ده چې د ډیرو په خیرراغلې او تشریف مو راوړ په ځای ډیر ځیر واوسي چې د مرکې حق ادا کړي .

ډیر داسې مرکه کوونکي شته کله چې له چارواکي سره مرکه کوي ، نوخپله ورته کینې هغه یې خوشې کړی وي چې څه وایي هغه وایي ، خپله ځان ته لا د پوښتنې جرات هم نه ورکوي چې د اوریدونکي پداسې وخت کې له مرکې ښه نه راځي .

یاهم د وړوکوالي احساس کوي ، خبرې په مهرباني وکړئ ، که ممکنه وي او ... کلمو پیلوي چې هم ځان وړوکی کوي خو په حقیقت کې ورسره میلیونونه کسان چې د هغه پروګرام اوري یا ګوري هم وړوکي کوي .

خو له عامو خلکو سره په کوڅه او بازار کې هسې پوښتنې کوي ته به وایې چې خپله د ریاست جمهوري له مانۍ څخه راوتلی دی او یوډول احسان په مرکه ورکوونکي اچوي .

کله چې له کوم مجرم سره هم مخ کیږي هسې چلند کوي ته به وایي چې خپله یې په معصوم او پاک دی هیڅکله هم ترې خطانه کیږي ، یاهم قاضي دی .

دلته څو ټکي یادول غواړو

اول: دهرډول خبرو اترو لپآره باید ستاسې کلتور ، خبراوی او جامه مناسبه وي یا په بل عبارت ستاسې شخصیب باید د مرکه ورکوونکي له شخصیت سره په بشپړه توګه برابر وي ترڅو ښه وکولای شئ هغه مو په آسانۍ سره ومني او ستاسې شتون سپکاوئ ونه ګڼي .

یو شل کلن ځوان چې رنګارنګ کمیس او ډولي پتلون یې اچولي دي نشي کولای په هغه توګه چې لازمه ده له دیني شخصیتونو او علماوو سره اړیکې ټینګې کړي ، او هغه دچاخبره هر اړخیزه مرکه واخلي.

دوهم: د هغه ځای چې پکې مرکه کوئ دود او آداب مراعات کړئ ، او د مرکه ورکوونکي ګروهنو ته احترام او پام وکړئ.
که کوم مسجد یا کور ته ولاړاست چې خلک هلته بوټونه دننه نه وړي تاسې هم خپل بوټونه بهر ته یوسئ.

هغه ټکي چې باید پرې وپوهیږئ
اول: مرکه کوونکی باید پوه شي چې ددغه مرکې موخه څه ده
دوهم: دمرکې پیل باید داسې وي چې هم د اوریدونکي پام جلب کړي او هم یې موضوع ګوتو ته ورشي.
مثلاً: پدې ورځو کې داسې ویل کیږي چې ... البته دا موضوع ...
- څه موده وړاندې چارواکو وویل چې .... خو هغه څه چې نن ورځ پښیږي د چارواکو د څرګندونو خلاف دي...

دریم: پوښتنې باید لنډې دقیقې او روښانه وي. هره پوښتنه باید په ترټولو لنډې جملې کې بیان شي او په عین حال کې باید بشپړ بیان ولري او روښانه وي.
روښانه پوښتنه کولای شي روښانه ځواب ترلاسه کړي. ځکه نو ښه خبره ده چې ټولې هغه برخې چې پوښتنه پکې شته ده باید جلا شي ، البته کله کله داسې هم پښیږي چې مرکه ورکوونکی د څو پوښتنو ځوابونه په یوځل وړاندې کوی.
که تاسې د هرې ساده پوښتنې لپآره اړ شئ چې سمه جمله پیدا نه کړئ او یاهم بشپړوونکې نه وي نو هم به مرکه ورکوونکی داسې وانګیري چې تاسې نه مطالعه لرئ او نه هم پدې اړه درسره پوره معلومات شته.
څلورم:
پوښتنې باید له اوله یعنې له مهم ټکي ترپایه په منظمه توګه مطرح شي یو به هغه وي چې تاسې به اړیاست چې یوه فوري پوښتنه وکړئ یعنې داسې څه وویل شي اوریدونکو ته یې روښانول اړین وي.

او یاهم یوه پوښتنه ډیر اوږد ځواب وغواړي ، خو بیاهم تاسې باید هڅه وکړئ چې لومړئ مهمې مسلې وپلټئ او په تدریج سره وړو مسلو ته راشئ.
پنځم:
پام مو وي هغه څه چې مرکه کوونکی وایي چې ستاسې د پوښتنې ځواب وي نه داسې چې تاسې له اسمانه خبرې کوئ او مرکه کوونکی مو له ځمکې څخه په بابولالو سر وي.
زیاتره وخت مرکه کوونکی هڅه کوي ستاسې له پوښتنې څخه ځان بلې خواته کړي ، په تیره هم چارواکي یاهغه څوک چې پرې نیوکې شوې وي ، تاسې باید اجازه ورنکړئ چې له پوښتنې مو لیرې شي.
شپږم:
د مرکه ورکوونکي ځوابونو ته ځیر واوسئ ځکه چې ډیرې پوښتنې داسې پیدا کیږي چې له اوریدونکي سره پاتې کیږي ، او ستاسې ورته پاّم نه وي شوی.
یوائې په هغه پوښتنو چې ستاسې په کاغذ لیکل شوې دي پرې بسنه مه کوئ ، هڅه وکړئ ډیر معلومات تر اوریدونکي پورې ورسوئ او هغه موخه چې تاسې یې د مرکه په ترسره کولو کې لرئ تر ډیره ورته ورسیږئ.
اووم:
کله په ډیره ځیرکئ سره کولای شئ ځینې ځوابونه تکرار کړئ مثلاً یو چارواکی په خپله مرکه د دې پوښتنې په ځواب کې وایي:
- ښاغلی... ستاسې رسندویې او تبلیغاتي اړخ کمزوری دی فکر نه کوئ چې د رسنیو له لارې تبلیغات به هم د ښار په پاکولو کې مرسته وکړي ؟
- بلې دې مسلې ته هم باید پام وشي.
تاسې کولای شئ دده ځواب بېرته تکرار کړئ.
- بلې دې مسلې ته هم باید پام وشي ! نو لدې داسې څرګندیږي چې پخوا ورته پام ندی شوئ ؟
یاداسې نور...
داهم په یاد ولرئ چې د مرکې له موخو څخه یوه داهم ده چې هغه ټکي چې تراوسه ورته پام ندی شوی د هغه یادول او هغې ته پام جلبول دي.
مرکه یوائې د طلوع تلویزیون په څیر د نیوکو د ټولګې معنی نه لري.

اتم: خپل معلومات هم د پوښتني په چوکاټ کې واچوئ ترڅو له مرکه کوونکي سره د لازیاتو معلوماتو په برسیره کولو کې مرسته وکړئ.
یو به هغه وي چې مرکه کوونکی په هغه اړه معلومات ونه لري نو بیا کولای شی په اړه یې تاسې خپله معلومات وړاندې کړئ او ووایئ چې د هغه معلوماتو له مخې چې د دغه پروګرام څیړونکو په لاس راوړي دي.
نهم:
بلې خواته لاړ نشئ، که څه هم ډیر احتمال د مرکه ورکوونکي دی چې بلې خواته لاړشي خو تاسې باید ډیر ځیر وئ چې هغه هم په بشپړه توګه کابو کړئ څه وار خوددې شو چې تاسې خپله هم په بله ولاړ شئ.
لسم:
دا له یاده مه باسئ چې ستاسې پروګرام د ټولنې بیلابیلې پرګنې ګوري او اوري. ځکه هم نو ډیر روښانه او د پوهاوي وړ ځواب ته اړتیا لرئ.
مثلاً که د کورجوړونې په اړه خبرې کوئ یا هم د اقتصادي مسایلو په اړه خبرې کوئ مرکه کوونکی فیصدیو ته مخه کړي، او یو اځې وایي چې سږ کال د تیر کال په نسبت دومره فیصده زیاتوالی لرو دومره فیصده کموالی لرو چې د څلورو کلونو وړاندې په نسبت دومره زیاتوالی یا کموالی کیږي نو اوریدونکی او لیدونکی به ورته یو اځې موسک شي نور به پدې پوه نشي چې نو دقیقاً څومره لاسته راوړنه لرو، چې دلته تاسې د مسولیت په نه درک یا په کمزورئ تورن کیږئ که څه هم تاسې به پرې ښه و پوهیږئ.
دلته باید تاسې بیا پوښتنه وکړئ چې مرکه کوونکی درته بشپړ او روښانه ځواب وړاندې کړي چې دومره کورونه مو جوړ کړي دي یا دومره لکه، میلیونه یا میلیارډه افغانئ عاید لرو چې د تیرکال عاید مو دومره میلیونه یا ملیارډه افغانئ وو.
او بیا وروسته دا پوښتنې هم مطرح کړئ چې دا کورونه چیرته جوړیږي ؟ چاته به ورکول کیږي ؟....
دا هغه پوښتنې دي چې ستاسې اوریدونکی یا لیدونکی غواړي پرې وپوهیږي، پدې صورت کې به مرکه کوونکی هم دقیق شي او هغه د چاخبره لافو ته به نه مخه کوي او په خپل قول به هم بیا ولاړ پاتې کیږي.
یوولسم:

د مرکه ورکوونکي نوم او دنده په بشپړه توګه یاد کړئ. مثلاً ... ښاغلی ډاکټر ... د ... مشر یا هم. ښاغلی جنرال ... د .... قوماندان....
کله چې تاسې د هغه نوم اخلئ هغه ویاړ کوي او یو ډول احساس هغه د چاخبره پکې زیاتیږي او بې شکه ستاسې په پوښتنو هم اغیز کوي.
که مرکه اوږده وي نو دا نوم یو یا دوه ځله تکرار کړئ ترڅو هغه کسان چې په نیمایي کې له مرکې اوریدلو یا لیدلو سره یوځای کیږي هم پدې پوه شي چې څوک دی او څه کاره دی.
دولسم:
ستاسې په لږ بې پروایئ سره د مرکه ورکوونکي زیاتي خبرې له اصلي ځواب څخه څو چنده زیاتیږي.
موږ ډیر دا عادت لرو کله چې د خبرو لپآره فرصت پیدا کوو ډیر په جزیاتو خبرې کوو او د تملق کلمې ډیرې کاروو یاهم ځان ستایو او کله هم له دغه فرصت څخه د راتلونکو مرکو د احتمال لپاره کاروو.
ډیره پېښیږي چې د مرکه ورکوونکي ټول ځواب یو اځې یوه لنډه جمله وي خو هغه په سلام او د شعر او حدیث په ویلو او د پروګرام له کارکوونکو څخه په ډیرو منننو سره ډیر وخت تیر کړی وي.
کله هم د غه زیاتي ویناوې ایډیټ کیږي خو هرکله هم نه وي.
دیارلسم:
تاسې هم له ډیرو منننو او ژورو ښه راغلیو څخه ډډه وکړئ او اصل مطلب بیان کړئ، ځکه چې له بل هرچا تاسې خپله ښه پوهیږئ چې د راډیو ټلویژن وخت له هرڅه مهم دی.
څوارلسم: که کوم ځواب ستاسې په خوښه نه وي نو په ډاګه مه وایاست چې زه نشم کولای ستاسې دا ځواب ومنم ځکه ... دا چاره له مرکه ورکوونکي سره ستاسې د ټکر په معنی ده او ښایي بیا ونشی کولای چې په زړه پورې مرکه ترلاسه کړئ.
تاسې خپل مخالفت داسې هم بیانولای شئ.
- ماتراوسه فکر کاو ...
- ستاسې دا دلیل د ډیرو هغو کسانو لپاره چې تراوسه یې زما په څیر فکر کاوه چې .... د پام وړدی ... خو
پام مو وي چې تاسې مرکه کوی نه مباحثه، تاسې له هغه څخه پوښتنې کوئ او هغه خپل نظر وایي که سم وي که ناسم.

دامو باید په پام کې وي چې تاسې یوائې د پوښتنې حق لرئ او دځواب حق له مرکه ورکوونکي سره دی او تاسې اړ نه یاست چې هغه له خپلې عقیدې واوړئ نه ستاسې دنده داده.

پنځلسم:

دهغه پوښتنو له مطرح کولو څخه چې ځواب یې معلوم وي ډډه وکړئ ، مثلاً تاسې له چا پوښتنه کوئ: چې ستاسې په نظر حجاب ښه دی ؟

شپاړسم:

کله چې مرکه ورکوونکی خبرې کوي باید ستاسې پام هغه ته وي .

تاسې له هغه پوښتنه کوي او دا طبیعي ده چې هغه تاسې ته ځواب وایي او هیله لري چې تاسې یې ځواب ته ځیر وئ. ځینې ویندویان په مرکو کې یوائې هماغه لیکل شوي کاغذ ته ګوري او بس دې ته انتظار وي چې څرنګه مرکه ورکوونکی وروستی جمله ووایي نو خپله بله لیکل شوې پوښتنه مبارکه مطرح کاندي.

اولسم:

د ځینو کلمو او جملو په معنی کې ځیر واوسئ. ډیر کله داسې کیږي چې سخت ویوکي کاروي یا داسې اصطلاحات کاروي چې هرڅوک یې معنی نه پوهیږي.

دغه ډول ویوکو او اصطلاحاتو ته مو ډیر پام وي ځکه چې له هرچاسره فرهنګونه نشته چې ستاسې دانګلیسي او عربي مبارکې کلمې وژباړي چې دا به څه معنی لري ؟

چې دا بحث هم هغه بحث ته راجع کیږي چې وړاندې مووویل تاسې باید په یاد ولرئ چې ستاسې پروګرام دټولنې هره طبقه او پرګنه ګوري باید دهغوی په ژبه خبرې وکړئ.

اتلسم:

ډیرکله مرکه کوونکي دهرې پوښتنې په سر کې وایي: وبخښئ که پدې اړه هم معلومات ورکړئ یا مهرباني وکړئ...

کله چې یوڅوک ستاسې بلنه مني او له تاسې سره مرکې ته حاضریږي نور دې ته اړتیا نشته چې تراخره ترې بخښنه وغواړئ او دومره ډیره مهرباني پرې وکړئ چې اوریدونکی یا لیدونکی ستړئ کړئ !.

یا هم له چارواکو سره په مرکو کې وایو :

محترم وزیر صاحب !... که مهرباني وکړئ...

کیدای شي پدې اړه زمونږ اوریدونکو ته معلومات ورکړئ چې ....

یاهم وایو چې زموږ ځینو اوریدونکو غوښتنه کړې چې تاسې ورته د... په اړه ووایاست.
هرڅوک خپله دنده لري ، که وزیر دی که ولسمشر دهغه دنده ده چې دخپل ملت لپاره خدمت وکړي او په کومو برخو کې چې تاسې ترې پوښتني کوئ هغه خپله دغه ځوابونو ته حاضر شوی دی اوس نو دادومره بخښني څه معنی لري ، چې داچاره ستاسې په جرات او هغه موخې چې غواړئ یې تر اوریدونکو پورې ورسوئ ستاسې دناکامئ لامل کیږي.
ډیر کله مې په خپلو راډیوګانو او ټلویزیونونو کې اوریدلي او لیدلي دي چې له ښاروال صیب څخه خلک غوښتنې لري ، او کله چې په مرکو کې هم حاضریږي نو مرکه کوونکي ترې بخښنې غواړي او مهرباني پرې کوي.
داد هغه دنده ده چې د خلکو په غوښتنو عمل وکړي که هغه هم نشي کولای نو خپل دلایل وړاندې کوي په موږ یې څه چې ورته ووایو که مهرباني وکړئ او لطف وکړئ...
البته زما منظور داندی چې موږ د نو له خلکو سره په ترخه لهجه مرکه کوو او داسې کلمې کاروو چې نه یوازې په مرکه کوونکي ښې نه لګي بلکې د اوریدونکي غوسه هم وپاروي.
نولسم:
که داسې احساس کوئ چې دا کومه مرکه چې کوئ یاهغه متن چې لولئ ستاسې دکاري او مطالعاتي زمینې سره اړخ نه لګوي مه یې منئ.
وړاندې مو هم وویل چې هڅه وکړئ په هغه موضوع چې بحث پرې کوئ ښه پرې مسلط وئ.
شلم:
اجازه مه ورکوئ چې مرکه ورکوونکی مو موضوع تکرار کړي.
موږ زیاتره عادت کړی دی چې یوه موضوع په ډیرو خبرو کې تکراروو که څه هم یو مجلس او یوه ناسته وي. نو تاسې خپل وخت اودمرکې اهمیت ته په پام سره مرکه کوونکی مه پریږدئ هغه مطلب چې پخوا یې بیان کړ بیاهم ووایي.
یوویشتم:
د مرکه ورکوونکي له احساساتو او د بیان له آلو سره پام کوئ. ډیر داسې کسان شته چې په خپلو خبرو او چالاکیو سره خلک ترخپل اغیز لاندې راولي او څه چې یې زړه غواړي هغې خوا ته یې بیايي .
په یاد مې دي ، زموږ د ولسي جرګې یو وکیل ډیرې په ناز خبرې کولې ، که څه هم دهغې عادت په ناز خبرې کوي ، خو خبرې یې ښې او پخې وې ، واقعاً زما په اند هماغه حقیقت

وو . مګر يو بل وکيل په شور او هيجان سره خبرې کولې د خبريالانو راپورونه يې تر اغيز لاندې راوستلي او لومړيتوب يې ګټلی وو .
دوه ويشتم : خپل نظر له ځان سره وساتئ او يو اځې د مرکه کوونکي نظر ته اهميت ورکړئ مثلاً :
- ښاغلی ... ټول پوهيږي چې ... په دې اړه تاسې څه فکر کوئ ؟
نو څه فکر به کوي ، کله چې ته ورته ځواب هم په مخکې وايې نو بيا څه اړتيا ده هغه خوار پرې انرژي ولګوي که بيا ډير جزوي له بلې پوښتنې سره يې وتړئ او په بله توګه يې ځواب ترلاسه کړئ .
يا هم وايو چې : ښاغلی ... ستاسې نظر د هغه افغانانو په اړه څه دی چې په بهر هيوادونو کې ميشت دي او خپل هيوادته د ستنيدلو ډيره مينه هم لري خو امکانات ورته برابر ندي .
هغه خوار به هم وايي چې هو ولا زړه يې غواړي خو امکانات برابر نه دي خو موږ کوښښ کوو .
لدې به هلته ښه وه چې تاسې پرې داهم ورزياته کړې وای چې تاسې هم کوښښ کوئ خو بياهم په بشپړه توګه امکانات ندي برابر شوي چې هغوی خپل هيواد ته راستانه شي .
دوه ويشتم : د پوښتنو د برابرولو په مهال هغه پوښتنې چې تاسې پوهيږئ د مرکه کوونکي غوسه پاوري اخرته پريږدئ .
په داسې صورت کې به تاسې خپل مطلب ترلاسه کړئ وي ، ياهم که مرکه تمامه شي تاسې به ناکامه نه وی پاتې شوي ، او له ټولو مهم داچې ستاسې پروګرام د پای ته رسيدلو په حال کې دی داچې ستاسې دپروګرام يا مرکې پيل جالب وو او ښه پيل شوی وو نو پای يې هم بايد ښه او اغيزمن پای ته ورسوئ .
خو داد دې معنی نه لري چې تاسې نو په خپلې پوښتنې کې دهغه سپکاوئ وکړئ يا هغه ته بد رد ووايا ست .
درويشتم :
په پام کې ولرئ چې په هره مرکه کې د ستونزې بيان يو اړخ دی چې بايد په خلاصه توګه يې يادونه وکړئ او د قضيې بل اړخ د ستونزې په هواري کې د اړوند لوري اقدامات يا فعاليتونه دي چې ستونزې خلک ژر حس کوي .
په هغه صورت کې چې تاسې دخلکو ستونزې بيانوئ او چارواکي خپلې ستاسې هنر دادی چې خلک مو هم له هغو ستونزو هم خبر کړل .

ځلور ویشتم:
ستاسې ویوکي او اصطلاحات له پروګرام سره سم وي. او یا هم ستاسې د بیانولو طرز د مرکه کوونکي له سن او کلتور سره مناسب وي.
ځلورویشتم: د خپلې مرکې پایله جوته کړئ ، په هغه څه چې بحث شوی دی یا هم په ځینو ځیزونو اعتراف شوی دی یا هم د ځینو ځیزونو وعدې ورکړل شوې.
او که شونې وي خپل د مرکې لوري ته هم اجازه ورکړئ چې د مرکې پایله له خپله نظره په ګوته کړي کنه تاسې باید حتماً دا کار وکړئ.
بالاخره تاسې باید داسې مرکه کوونکی یاستئ چې کله له چا سره مرکه کوئ نو هغه ونه وایي چې یو څه به ووایم بلکه ووایي چې څه ووایم؟
.

## راپور

داچې وړاندې مو هم وویل چې هره مرکه یو ډول راپور دی او هر راپور معمولاً له مرکې سره مل وي او بیا دا دواړه له هغه څه سره چې موږ پرې نوم ویندویي ایښی تړلي دي.
همدا راپورونه په دوه ډوله ویشلای شو.

اول:

له مرکې پرته راپور

چې دا ډول راپور د ویندویۍ هرډول شرطونو ته اړتیا لري او هغه څیزونو ته چې وروسته به وویل شي هم اړتیا لري.

دوهم:

راپور له مرکې سره

څوک وایي چې راپور دستوډیو له ویندویۍ څخه آسانه دی؟ یو ویاند چې د تمرین او مطالعې وخت لري څرنګه تصور کوي چې کاریې له یو راپور څخه ګران دی چې هغه یوازې یو وخت لري چې خپل راپور وړاندې کړي.
آیا د سټوډیو هر ویاند کولای شي په راډیو یا ټلویزیون کې ژوندی پروګرام وړاندې کړي یا هم له واټونو او سختو سیمو څخه معلومات وړاندې کړي؟ خونه.
هغه راپورټر چې په خپل راپور کې له بیلابیلو کسانو سره مرکو ته اړ دی په ټولو هغو څه چې د مرکې په برخه کې مو وویل پابند دی. یوځل بیا یادونه کوو چې د مرکې ټولو قوانینو ته هم اړتیا لري خو خپل ځانګړي مسایل هم لري.
په کلي توګه په راپور کې دوه څیزونه باید مراعات شي.
الف: کلامي اړخ
ب: فني اړخ
الف: کلامي اړخ:
اول:
ترخپله وسه له هرچا سره په خپله ژبه خبرې وکړئ. مثلاً کله چې له یو ماشوم سره دیوې مسلې په اړه خبرې کوئ که ورسره د هغه په ژبه خبرې ونه کړئ خپل مطلب ته په آسانۍ سره نه شئ رسیدلای له کورنئ میرمنې سره.. او همدا راز د بهرنیو چارو له وزیر سره.
له ماشوم سره په ماشومانه، له میرمنې سره په خپله کورنئ ژبه او له وزیر سره هم په هغه لهجه او طرز سره خبرې وکړئ چې لدې وړاندې وویل شول. مناسب لحن، سن، کلتور او...
دوهم:

دهر کس واقعي نظر واورئ ، ډیر کله که مورږ په یو ټول کې وو نو که ځلور کسان په یوه خوله یوه موضوع تایید کړي مورږ یې هم تاییدوو نو تاسې هڅه وکړئ له بیلا بیلو کسانو څخه بیلا بیل نظرونه واورئ ، او ددې په ترڅ کې خپل نظر هم په جیب کې کیږدئ.

دریم :

له خلکو څخه کلي پوښتنه مه کوئ یا هم له یوې کلي پوښتنې څخه وروسته جزیي پوښتنې مه مطرح کوئ ځکه چې ښایي هغوی ستاسې د پوښتنې هر جز ته ځواب ونه لري.

او دخبریالانو د میکروفون په وړاندې ډیر خلک سره وارخطا شي نوهله بایده ده چې ډیره مو پوښتنه ساده اوځواب یې هم ساده وي.

څلورم :

خلک مه محاکمه کوئ ، تاسې یو خبریال یاست نه قاضي یا ... تاسې باید له خلکو سره داسې خبرې وکړئ چې نه غوسه ورشي او نه هم خجالت شي.

یا په بل عبارت تاسې له خلکو سره خلک شئ.

پنځم :

دخبرواترو لپآره غوره کیدونکو کسانو ته په پام سره داسې پوښتنه مطرح کړئ چې ځواب یې ګټور او رغنده وي.

شپږم:

کوم څه چې په تصویر کې شته پوښتنه یې مه کوئ.

ډیر وخت زمورږ په تلویزیونونو کې داسې شوي دي چې یو څوک ښه ګورې چې هغه دی څه کوي خو بیا هم خبریال ورځي ترې پوښتنه کوي څه کار کوې ؟

یو ځل مې همداسې څه څیز کتلو . له ځان سره مې وویل کاشکي اوس خو دا کس په پورې وخاندي او ورته ووايي چې مګرپه خپله سترګې نه لرې چې دا څه کوم اخته یم ؟

اووم:

دهغه چالپاره چې وروستی کس دی اوخپل نهایي نظر وړاندې کوي دنورو خلکو نظرونه هم بیان کړئ.

او بیا وروسته ترې اخري پټ څیزونه وپوښتئ.

فني اړخ :

ددې لپاره چې ښه تصویر او غږ د خپراوي لپاره وړاندې کړئ ، دغه ټکي باید په نظر کې ولرئ.

اول:

د تصویر بک ګرونډ ته مو پام وي ، وړاندې لدې هم اشاره وشوه چې د شاوخوا تصویر باید لیدونکی له اصلي مطلب څخه بلې خوا ته متوجه نکړي.

مثلاً کله چې تاسې د جامو دیوې هټۍ په مخ کې له یو چاسره د سړکونو د وضعیت په اړه خبرې کوئ نو دلیدونکي به ډیر په هټۍ کې جامو ته وي ښاَیي ستاسې د خبرو مهمې برخې یې له نظر تیرې نشي ، همدارنګه دیوالي تبلیغاتو او نورو څیزونو ته هم باید تر وسه وسه پام وکړئ.

کله کله هم خلک سره ټولیږي کمرې ته لاس خوځوي ، چې هله به له راپور څخه سم بنډار جوړ شي او لیدونکی به مو له راپور څخه هومره ستړی نشي لکه دخلکو له بیروباره !

دوهم:

نور ستاسې دتصویر په روښانتیا او شفافیت کې مهم رول لوبوي. کله چې تاسې په آزاده فضا کې خبرې کوئ ځیر واوسئ چې د ونو دښاخونو او پاڼو د پاڼو سیورئ یا مو دمیکروفون سیورئ... مو دتصویر روښانتیا داغي نه کړي.

دروښنایئ لورئ په نظر کې ونیسئ او هڅه وکړئ چې مرکه کوونکی مو داسې لوري ته وي چې ښه وکولای شئ ښه تصویر یې ثبت کړئ.

که څه هم داځینې څیزونه په کمره مین یاتخنیکر پورې اړوندیږي خو داچې خبره له راپور څخه ده دلته مو یې یادول اړین وبلل.

دریم:

د مرکه کوونکي او ځوابوونکي ترمنځ د مایکروفون حرکت دغږ په یوډول والي کې ډیر اغیز لري ډیر وخت داسې کیږي چې خبریال خپل مایک نه خوځوي او دخپراوي په وخت یې هماغه غږ خپریږي هم چې په سمه توګه اوریدونکی نشي کولای ستاسې غږ واوري او داغږ بیا په ایډیټ کې هم نه شي سمیدلای که سمیږي وخت ډیر غواړي او دخبریال راپور بیا ډیر وخت خبره هم نده.

څلورم:

د ځینو کسانو له مرکو څخه ډډه وکړئ ، چې د هغوی یا جامه سمه نه وي یا یې نظافت سم نه وي یا یې هم خبرې ، حرکات او ژابلې ژوول. یو به هغه وي چې ستاسې پروګرام به د همداسې خلکو لپاره وي.
چې داکار زموږ په تلویزیونونو کې شته چې هغه خلک چې په کورونو کې ناست دي د داسې خلکو په لیدلو سره خپه کیږي ځکه چې د هغوی ځوانان او د کورنۍ غړي هم داسې احساس کوي چې ښایي دا جامه به ښه وي.
په کلي توګه ویلی شو چې د ښه کلتور د خپرولو لپاره هڅه وکړئ.

هغه څیزونه چې په دې برخه کې مو یاد کړل ښایي دډیرو دوستانو په نظر څرګند او تکراري وي خو بیا هم ددې څیزونو یادول زیان نه لري. دوهم دا چې ټول هغه دوستان چې د لومړي ځل لپاره د راپور په جوړولو پسې ځي پدې څیزونو پوهیږي ؟
خو بیاهم ستاسې دبریالیتوب په هیله کولای شئ له لږ دقت وروسته زموږ د پورته یادونو په رڼښتینوالي هم وپوهیږئ.

## تبلیغاتي ژبه:

نن ورځ راډیو او ټلویزیون ، سوداګریزو اعلانونو ته د یوې مالي سرچینې په توګه اهمیت او اړتیا لري ، یا په بل عبارت د پیسو په مقابل کې تبلیغ د راډیو او ټلویزیون د پروګرامونو یوه لویه برخه جوړوي.

په تبلیغاتي ویندویۍ کې ، د توکو د معرفي کولو او دهغه د رانیولو لپاره د اوریدونکي یا لیدونکي جلبول ، ترټولو اړینه خبره ده ، دا چې په څه ډول او کوم ځای کې معرفي کیږي په مونږ پورې اړه نلري ، مونږ غواړو د ویندویۍ د څرنګوالي په اړه یې خبرې وکړو.

زمونږ په ټلویزیونونو لکه طلوع او آریانا کې به تاسې هم لیدلي وي ، ځینې وخت داسې سوداګریز اعلانونه چې د ښځینه وو لپآره د توکو معرفي وي ، نارینه ویاند لوستی وي ، یاهم د ماشومانو لپاره کوم څیز اعلانیږي په داسې لهجه یې ثبت کړی وي چې ماشوم څه غټان یې هم له اخیستلو ویرولي وي.

لطفاً لاندې مثالونو ته ځیر شئ:

اول: پنځه سوه نقدي جایزې ، کمپیوټر ، کور ، موټر ........... هووووووو څومره عالي یواځې او یواځې عزیزي بانک ....هههههه... بلې ، زه هم فکر کوم.

دوهم: یخ ، خوندور ، خواږه ، هرځای ، ارزانه ....... یواځې د ماشومانو لپاره ... هه پوه شوم ... هوووووووم ګل بهار ایس کریم.

دریم: ښه کیفیت ، ښه مخینه ، ښه راتلونکې ، ښه ژوند ، ښه پاکي ، آساني ، نرمي ، خوشبویي ...... ههه فلانی صابون. د هرچالپاره هووم.

څلورم: مونږ خپله ایماني او وجداني دنده ګڼو چې ، د وطن د دښمنانو ملاماته کړو او مخ په وړاندې ګام کیږدو. راځئ په دې برخه کې مو ملاتړ وکړئ ، هیڅوک مه پریږدئ چې زمونږ د راتلونکي نسل راتلونکې د اور خوراک کړي ، د ښونځیو سوځونکو ته په خپله سزا ورکړئ.

یاد اسې نور...

لمړی د یو بانک اعلان دی ، ښایي په دې بانک کې ښځینه هم اکونټونه ولري او نارینه هم په جایزو کې هم ښایي دواړه شریک وي. خو دا چې د نارینه وندې ډیره ده که نارینه ویاند یې ولولي زه فکر کوم ښه به یې ولوستلای شي.

په لمړي سر کې چې څوتکي لوستل کيږي که په ټينګار او ډيرې تلوسې ولوستل شي خوند يې زياتيږي ، بيا په تصويرونو کې دخپلو خوبونو له پوره کيدو وروسته وايي څومره عالي خو دا لوستل او ويل بايد له هغه اول سره ډير توپير ولري دا په ډيره تلوسه لوستل کيږي او بيا کله چې د اعلان وروستئ برخه راځي هلته له ډيرې خوښئ وروسته خاندي او د يو ليدونکي يا هغه چا په توګه چې دغه څيز اخلي وايي زه هم فکر کوم.
په هر اعلان کې له کمپيوټري تصويرونو ، سازونو ، سندرو او هرڅه ويندويي مهمه ده که د ويندويې کيفيت خراب وي ټول اعلان هيڅ کيږي او دامو بايد په ياد وي چې د تلويزيون او راډيو سوداګريز اعلانونه په تفريحي پروګرامونو کې شامليږي که يې د ويندويې کيفيت خراب وي نه يوازې يې د اعلان خاوند ته ګټه نه رسيږي بلکې د ټلويزيون د خپرونو يعنې د تفريحي پروګرام د بدرنګئ لامل هم کيږي.
دوهم اعلان بيا د ماشومانو لپآره دی ، دغه اعلان په هغه ډول چې د عزيزي بانک اعلان مو ولوست لوستلای شو ؟ دومره غټ غږ پکې ځايولی شو .
طبيعي ده چې د ماشومانو لپاره د خپرونې ، اعلان او هرڅه ژبه بايد عاطفي وي ، نرمه وي له مينې ډکه وي ، ترڅو خپل مخاطب چې هغه ماشوم دی له ځانه سره وساتلای شي.
که نوموړی اعلان د ماشوم په هغه غږ چې خپله ماشوم يې له ځانه سره وايي چې خوندور ، خوږ ، يخ ، که په هغه ډول ثبت شي څومره اغيز به وښندي همدا راز که همدا متن يو لوی سړی په غټ غږ ولولي مزه به يې څرنګه وي خو زه فکر کوم له ماشومانو به له سره ايس کريم هير کړي .
دريم اعلان د ښځينه وو لپاره دی ځکه چې اعلان شوي توکي زياتره په ښځينه وو پورې اړه لري ، دا اعلان که نارينه لولي ښايي په هغه توګه چې لازمه وي دا اعلان حق ادا نه کړای شي ځينې وخت د ښځينه وو اعلانونه ځوانانو ته په لاس ورکوي ، چې جلبونکی غږ ولري مګر دا چې اعلان د ښځينه وو لپاره وي د ښځينه وو په غږ کې لا ښکلی کيږي او د ښځينه وو احساس او غږ ښه کولای شي چې د ښځينه وو نظر جلب کړي.
په خواشينئ سره به وو ايو چې زموږ په تلويزيون او راډيوګانو کې د سوداګريزو اعلانونو کيفيت او دويندويې ژبې ته څومره پاملرنه نه کيږي. چې دا د نوموړو اعلانونو اغيز هم کموي.
له بلې خوا زموږ په تلويزيونونو کې لا تبليغاتي ژبه يو ډول محدوده ده او داسې ويندويي يې کيږي ته به وايي چې د مړو لپآره اعلانونه کوي.

بله موضوع هم چې مهمه ده هغه داده چې د اعلان تصویر ، موسیقي او داسې نور مسایل باید په نظر کې ونیول شي او لیکوال یا هغه څوک چې اعلان برابروي باید دې خبرې ته ځیر وي چې هرڅومره د هغه لیکنه عامه ګړدود ته نږدې وي هومره به یې مینه وال زیات شي.
څلورم اعلان هم د حکومت یا پوځي مسئولینو لخوا اعلان دی چې باید هرڅومره چې شونې وي په هغه کچه په مناسبه تنده او په عین حال کې په صمیمانه لهجه ولوستل شي یا پداسې اعلانونو کې کله کله د بم او توپ ژبه پکار وي چې هرڅومره غږ د توکو د کارندوالي له ډول ، کاروونکو او کیفیت سره نږدې وي هومره به بریالی وي.
په ټول کې ویلی شو چې زموږ په ټلویزیونونو او راډیوګانو کې تردې مهاله سوداګریز اعلانونه لا خپل لومړني ګامونه اخلي خو د ویندویې کیفیت یې که وو ایو له صفر سره برابر دی نو مبالغه به مو نه وي کړي.
دغه پورته څوټکي که د ویندویې له نورو آرونو سره یوځای په نظر کې ونیول شي که د خدای خوښه وه نو د اعلانونو کیفیت به ښه شي.

په ډیره مینه او ستاسې د بریالیتوب په هیله.
۱۳۸۶/۲/۹
د تهران د نړیوال راډیو ټلویزیون میلمستون
تهران ایران

د لیکوال پېژندګوي:



نوم: عبدالله (الهام) جمالزی
د پلار نوم: الحاج مولوي عبدالسلیم جمالزی
د زیږیدو نیټه: ۲۵/۵/۱۳۶۶ یاد ۱۹۸۷ داګست ۱۶
دنده: ژورنالیستپاو ویاند
آثار:

1. هندي خالونه (لنډې کیسې)
2. انځورونه (لنډې کیسې)
3. ګناه کبیره (پولیسي کیسې)
4. دویندویۍ فن (همدا اثر)
5. ریښتیاهم خلک خدمت ته اړتیا لري (یونلیک)
6. ناچاپ : دوه ناولونه، دوه د لنډو کیسې ټولګې او د دروغو، مذهب او تعصب په نوم د ایران یونلیک.
7. بیلابیلې ژباړې.

ویب پاڼه:
www.taand.com

د اړیکو پتې:

aalhamj@gmail.com
a.alhamj@yahoo.com
elham.jamalzai@hotmail.com